

المملكة العربية السعودية
وزارة الشؤون الإسلامية والدعوة والإرشاد
وكالة المطبوعات والبحث العلمي

# د مسلمان ساتنه

## په قرآني او نبوي اذکارو کې

### د (حصن المسلم) پښتو ژباړنه

ليکنه

سعيد بن على بن وهف القحطانى

بـښـتـو

# د مسلمان ساتنه

## په قرآني او نبوي اذکارو کې

د (حصن المسلم) پښتو ژباړنه

**ليکنه**

د/ سعيد بن علي بن وهف القحطاني

**ژباړنه**

عبد النافع زُلال

دچاپولو او خپرولو اداره
د.اسلامي چارو او اوقافو او دعوت او لارښووني وزارت
سعودي عربستان
١٤٣٦ هـ



## د ژباړن* سریزه

الحمد لله رب العالمين والصلاة والسلام على محمد الرسول الأمين، وعلى آله وصحبه أجمعين، وبعد:

پـــدې کـــې شک نشته چې د شرعي نصوصو (قرآني آيتونو او نبوي احاديـــثو) ژباړل د اهميت وړ خبره ده، ترڅو عام خلک* چې له عربي ژبې سره آشنايي نلري، وکولای شي د قرآن او حديثو د الفاظو په معنى پوه شي، او په هغه کې نغښتې* مفاهيمو او احکامو باندې ځان خبر کړي. او لدې جملې نه د دعاګانو او اذکارو ژباړل* هم ارزښتناک کار دی، پدې چې دعاګانې او اذکـــار د مسلمان په معنوي ژوند کې يو ځانګړی ځای لري، چې د ژوند په مختلفو او بدليدونکو حالاتو کې الله ﷻ ته دبنده د توجه اړولو، تضرع* او عاجـــزي کولـــو، او د هغه د يادولو او ستايلو، او له هغه نه مرستې او مدد غوښتلو، او د هغه حکم او فيصلې او قضاء او قدر ته د تسليميدلو ځرګندونه* کوي. که څه هم د مسنونه دعاګانو او اذکارو ويل په عربي سره غوره خبره ده، خو د هغه په معناګانو او مفاهيمو باندې پوهيدل هم ضروري ګڼل کيږي، تر څو يې د لوستلو او ويلو په حالت کې لوستونکی له پوره اخلاص او د زړه له حضور نه، او په هغه کې د تدبر* او تفکر* کولو نه برخمن* وي.

مـــا پــــه ژباړنه کې د لفظي او حرفي ژباړنې لاره نده غوره کړې، بلکه د معـــنى او مفهوم په نظر کې نيولو سره مې د پښتو ژبې د قواعدو سره سم روانه

ژباړنه کړیده، او دا ځکه چي حرفي او لفظي ژباړنه په دوه لحاظه کمزوري وي، اول دا چــي د عربي جملي مفهوم په پوره توګه* نشي افاده* کولای، او بل دا چي پښتو جمله د کلماتو د ارتباط او ترتیب په لحاظ کمزوري، او ناتمامه وي، او لوستونکی ته د فهم وړ نه وي.

او کــوم عــبارتونه یــا کلمي چي د معنی د بشپړ تیا* لپاره مي اضافه کړیدي، هغه مي د دوو منحني شکله قوسونو په مینځ کي راوړیدي، تر څو د اصلي عبارت له ترجمي نه بې توپیر* وشي.

بل دا چي په پښتو کي د مختلفو هجو او د مرادفو کلماتو د شته والي په خاطر مي د نوموړو کلماتو تر څنګ د ستوري علامه (*) ایښي ده، او بیا مي د کــتاب په پای کي د نومړو کلماتو یو جدول یا لست اضافه کړیدی، تر څو د ستوري لرونکي کلمي د دوهمي معنی یا بلي هجي د پیژندني لپاره ورته مراجعه وشــي، او پــدي توګه به د مختلفو هجو لوستونکي له کتاب نه په آسانی سره استفاده وکړای شي.

د احادیثو د ژباړلو لپاره مي د احادیثو شرح کونکي کتابونو ته مراجعه کړیده، او د خپل توان سره سم مي هغه معنی غوره کړیده، چي د لوستونکي فهم ته له ټولو نه نژدي ده، او د پښتو جملي سره زیات سمون لري.

امید دی چي دا کتاب د مسلمان ورور لپاره ګټور واقع شي، او له دعا نه مي هیر نکړي.

وصلی الله علی نبینا محمد، وعلی آله وصحبه وسلم.

عبد النافع زُلال

azolal@yahoo.com
azolal@hotmail.com
ریاض- ١٤٢٣/١/١٥هـ

## د مصنف سريزه

إن الحمد لله نحمده ونستعينه ونستهديه ونستغفره، ونعوذ بالله من شرور أنفسـنا وسيئات أعمالنا، من يهده الله فلا مضل له ومن يضلل فلا هادي له، وأشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له، وأشهد أن محمداً عبده ورسـوله، صـلى الله عليه وعلى آله وأصحابه ومن تبعهم بإحسان إلى يوم الدين، وسلم تسليماً كثيراً، أما بعد:

دا يــو مختصر (کتاب) دی چي ما له خپل بل کتاب «الذكرُ والدعاءُ والعــلاجُ بالرُّقَى مِنَ الكتابِ والسُّنَّةِ» نه مختصر کړيدی، او په هغه کي مي د نومــړي کتاب نه يواځي اذکار راوړيدي، تر څو په سفر کي يي له ځان سره اخيستل آسانه وي.

او يواځي مي د ذکر او دعا متن راوړی، او د هغه د تخريج له مراجعو نه مي له اصلي کتاب نه يواځي يو يا دوه مراجع ذکر کړيدي، او څوک چي د نومــړي ذکر او دعا راوي (صحابي) او د هغه تخريج پيژندل غواړي، نو اصلي کتاب ته دي مراجعه وکړي.

لـــه الله ﷻ نه د هغه په نيکو نومونو، او لوړو صفتونو سره سوال کوم چي دا کتاب خالص د خپل رضا لپاره وګرځوي، او هغه ما ته، لوستونکي ته،

چــاپونكي ته، او هغه چا ته چي په خپرولو كي يې برخه اخيستي ده په دنيا او آخرت كي ګټور وګرځوي، الله ﷻ د همدي كار مَل او په هغه باندي قادر دى.

وصلى الله وسلم على نبينا محمد وعلى آله وأصحابه، ومن تبعهم بإحسان إلى يوم الدين.

**د/ سعيد بن علي بن وهف القحطاني**

صفر/ ١٤٠٩هـ

## د ذکر فضیلت

الله جل جلاله فـــرمایي: ﴿فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُواْ لِي وَلاَ تَكْفُرُونِ﴾ [البقرة: ۱۵۲]

۞ ما یاد کړی، زه به تاسو یاد کړم، او زما شکر پرځای کړی، او زما نا شکري مه کوی.

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا اللَّهَ ذِكْراً كَثِيراً﴾ [الأحزاب: ٤١]

۞ اې مومنانو! الله په ډیرو یادولو سره یاد کړی.

﴿وَالذَّاكِـــرِينَ اللَّهَ كَثِيراً وَالذَّاكِرَاتِ أَعَدَّ اللَّهُ لَهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْراً عَظِيماً﴾ [الأحزاب: ٣٥]

۞ او د الله ذکر کونکو سړو او ذکر کونکو ښځو لپاره الله جل جلاله بخښنه* او لوی ثواب او اجر تیار کړی دی.

﴿وَاذْكُر رَّبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعاً وَخِيفَةً وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ وَالآصَالِ وَلاَ تَكُن مِّنَ الْغَافِلِينَ﴾ [الأعراف: ٢٠٥]

۞ خپل رب په عاجزی او په ویره او په ټیټ آواز سره چې پورته نه وي، له خپل ځان سره سبا او بیګاه یاد کړه، او له غافلانو څخه مه کیږه.

پیغمبر ﷺ فرمایي: «مَثَلُ الَّذِي يَذْكُرُ رَبَّهُ وَالَّذِي لاَ يَذْكُرُ رَبَّهُ

مَثَلُ الْحَيِّ وَالْمَيِّتِ»[(١)].

ﷺ هغه څوک چې د خپل رب* ذکر کوي، او هغه څوک چې نه يې کوي، مثال يې د ژوندي او مړي په شان دي.

او فرمايي: «أَلاَ أُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرِ أَعْمَالِكُمْ، وَأَزْكَاهَا عِنْدَ مَلِيكِكُمْ، وَأَرْفَعِهَا فِي دَرَجَاتِكُمْ، وَخَيْرٍ لَكُمْ مِنْ إِنْفَاقِ الذَّهَبِ وَالْوَرَقِ، وَخَيْرٍ لَكُمْ مِنْ أَنْ تَلْقَوْا عَدُوَّكُمْ فَتَضْرِبُوا أَعْنَاقَهُمْ وَيَضْرِبُوا أَعْنَاقَكُمْ؟» قَالُوا: بَلَى، قَالَ: «ذِكْرُ اللَّهِ تَعَالَى»[(٢)].

ﷺ آيا تاسو خبر نکړم ستاسو د ښو اعمالو نه، او له هغو اعمالو نه چې ستاسو د رب* په نزد له ټولو نه پاک دي، او ستاسو درجې* لوړوي*، او ستاسو لپاره د سرو زرو او سپينو زرو له خيراتولو نه هم غوره* دي، او ستاسو لپاره لدې نه هم غوره دي چې د دښمن سره مخامخ شی او بيا يو د بل غاړي* ووهی؟ (صحابه وو) وويل: هو (خبر مو کړه)، (پيغمبر ﷺ) وفرمايل: (هغه) د الله ﷻ ذکر کول دي.

او همدا رنګه فرمايي: «يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى: أَنَا عِنْدَ ظَنِّ عَبْدِي بِي، وَأَنَا مَعَهُ إِذَا ذَكَرَنِي، فَإِنْ ذَكَرَنِي فِي نَفْسِهِ ذَكَرْتُهُ فِي

---

(١) بخاري (فتح الباري ١١/٢٠٨)، او د مسلم ١/٥٣٩ لفظ دادی: «مثل البيت الذي يذكر الله فيه والبيت الذي لا يذكر الله فيه مثل الحي والميت»، ترجمه: هغه کور چې په هغه کې د الله ذکر کيږي، او هغه کور چې د الله ذکر نه پکښې کيږي، مثال يې د ژوندي او مړي په شان دي.

(٢) ترمذي ٥/٤٥٩، ابن ماجه ٢/١٢٤٥، صحيح ابن ماجه ٢/٣١٦، صحيح الترمذي ٣/١٣٩.

نَفْسِي، وَإِنْ ذَكَرَنِي فِي مَلإٍ ذَكَرْتُهُ فِي مَلإٍ خَيْرٍ مِنْهُمْ، وَإِنْ تَقَرَّبَ إِلَيَّ شِبْراً تَقَرَّبْتُ إِلَيْهِ ذِرَاعاً، وَإِنْ تَقَرَّبَ إِلَيَّ ذِرَاعاً تَقَرَّبْتُ إِلَيْهِ بَاعاً، وَإِنْ أَتَانِي يَمْشِي أَتَيْتُهُ هَرْوَلَةً»[1].

۞ الله جل جلاله فرمايي: زه د بنده د ګمان په وړاندي یم، او زه ورسره یم چي کله ما یاد کړي، نو که یې په خپل زړه کي یاد کړم، زه یې له ځان سره یادوم، او که یې په یوې ډلې کي یاد کړم، زه یې د هغې نه په غوره* ډله کي یادوم، او که ما ته د یوې لویشتي په اندازه رانژدې شي، زه به هغه ته د یو ګز په اندازه نژدې شم، او که ما ته د یو ګز په اندازه نژدې شي، زه به هغه ته د یوې وازې* په اندازه نژدې شم، او که ما ته په پښو* روان راشي، زه به ورته په منډه* ورشم.

وعَنْ عَبْد اللَّه بْنِ بُسْرٍ رضي الله عنه أَنَّ رَجُلاً قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّه إِنَّ شَرَائِعَ الإِسْلاَمِ قَدْ كَثُرَتْ عَلَيَّ فَأَخْبِرْنِي بِشَيْءٍ أَتَشَبَّثُ بِهِ، قَالَ: لاَ يَزَالُ لِسَانُكَ رَطْباً مِنْ ذِكْرِ اللَّه»[2].

۞ دعبد الله بن بُسر رضي الله عنه نه روایت دی چي یوه سړي وویل: ای د الله رسوله! د اسلام احکام پر* ما زیات شول، نو ما ته داسي شی* وښایه چي هغه باندي ټینګ عمل وکړم، پیغمبر ﷺ ورته وفرمایل: چي

(١) بخاري ١٧١/٨، مسلم ٢٠٦١/٤، او دا لفظ د بخاري دی.
(٢) ترمذي ٤٥٨/٥، ابن ماجه ١٢٤٦/٢، صحيح الترمذي ١٣٩/٣، صحيح ابن ماجه ٣١٧/٢.

ژبه دي بايد تل* د الله ﷻ په ذكر سره لمده* وي.

او پيغمبر ﷺ همدا رنګه فرمايي: «مَنْ قَرَأَ حَرْفاً منْ كتَاب اللَّه فَلَهُ به حَسَنَةٌ، وَالْحَسَنَةُ بعَشْرِ أَمْثَالهَا، لاَ أَقُولُ ﴿الم﴾ حَرْفٌ، وَلَكنْ: أَلفٌ حَرْفٌ، وَلاَمٌ حَرْفٌ، وَميمٌ حَرْفٌ»[1].

۞ چا چي د الله ﷻ له كتاب (قرآن) نه يو حرف ولوست*، نو هغه لره پدې كي يوه نيكي ده، او يوه نيكي لس چنده (ثواب*) لري، زه نــه وايم چي ﴿الم﴾ يو حرف دى، بلكه الف (بيل*) حرف دى، او لام (بيل) حرف دى، او ميم (بيل) حرف دى.

وعَـــنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامر ﷺ قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ ﷺ وَنَحْنُ في الصُّفَّة، فَقَالَ: «أَيُّكُمْ يُحبُّ أَنْ يَغْدُوَ كُلَّ يَوْمٍ إِلَى بُطْحَانَ أَوْ إِلَى الْعَقيقِ فَيَأْتيَ منْهُ بنَاقَتَيْنِ كَوْمَاوَيْنِ في غَيْرِ إِثْمٍ وَلاَ قَطيعة رَحمٍ؟» فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّه نُحبُّ ذَلكَ، قَالَ: «أَفَلاَ يَغْدُو أَحَدُكُمْ إِلَى الْمَسْجد فَيَعْلَمَ أَوْ يَقْرَأَ آيَتَيْنِ منْ كتَاب اللَّه عَزَّ وَجَلَّ خَيْرٌ لَهُ منْ نَاقَتَيْنِ، وَثَلاَثٌ خَيْرٌ لَهُ منْ ثَلاَثٍ، وَأَرْبَعٌ خَيْرٌ لَهُ منْ أَرْبَعٍ، وَمنْ أَعْدَادهنَّ منْ الإِبلِ»[2].

۞ عقــبه بن عامر ﷺ وايي: چي مونږ په صُفه* كي (ناست) وو

(١) ترمذي ١٧٥/٥، صحيح الترمذي ٩/٣، صحيح الجامع الصغير ٣٤٠/٥.
(٢) مسلم ٥٥٣/١.

چي پيغمبر ﷺ راووت، او ويې فرمايل: له تاسو نه څوک دا غوره ګڼي چي هره ورځ «بُطحان*» يا «عقيق*» ته لاړ شي، او له هغه ځای نه دوه بوکونو* واله اوښان* راولي، چي نه يې په کي کومه ګناه کړي وي، او نه يې پکي خپلولي ختمه کړي وي؟ نو مونږ وويل: چي مونږ (ټول) دا خوښوو، (پيغمبر ﷺ) وفرمايل: که له تاسو نه يو څوک مسجد* ته لاړ شي او د قرآن دوه آيته زده کړي او يا يې ولولي، او يا د قرآن دوه آيته ولــولي، نو دا ورته له دوو اوښانو نه غوره* ده، او دري (آيته) له دريو (اوښانو) نه غوره دي، او څلور له څلورو نه، او همدارنګي (دآيتونو) د شمير په اندازه له اوښانو نه غوره دي.

او ﷺ فــرمايي: «مَنْ قَعَدَ مَقْعَداً لَمْ يَذْكُرْ اللَّهَ فيه كَانَتْ عَلَيْه منْ اللَّه ترَةٌ، وَمَنْ اضْطَجَعَ مَضْجَعاً لاَ يَذْكُرُ اللَّهَ فيه كَانَتْ عَلَيْه منْ اللَّه ترَةٌ»[1].

۞ څــوک چي په يو ځای کي کيناست او الله ﷻ يې پکي ياد نکړ، نو د الله ﷻ له طرف نه به پري کمښت او زيان پيښ شي، او چا چي په يو ځای کي ډډه ولګوله او الله ﷻ يې هلته ياد نکړ، نو دالله ﷻ له طرف نه به ده ته کموالی او نقصان راشي.

---

(١) ابو داود ٢٦٤/٤، او نورو هم روايت کړيدی، صحيح الجامع ٣٤٢/٥.

او ﷺ فرمايي: «مَا جَلَسَ قَوْمٌ مَجْلساً لَمْ يَذْكُرُوا اللَّهَ فيه وَلَمْ يُصَلُّوا عَلَى نَبِيِّهِمْ إلاّ كَانَ عَلَيْهِمْ ترَةً، فَإنْ شَاءَ عَذَّبَهُمْ وَإنْ شَاءَ غَفَرَ لَهُمْ»[١].

❁ كوم قوم چي په يو ځاى كې كيني، او الله ﷻ پكې ياد نكړي، او نه په پيغمبر ﷺ درود ووايي، نو دا به ددوى لپاره (دالله ﷻ له جانب نه) دنقصان سبب وي، كه وغواړي عذاب به وركړي، او كه وغواړي بخښنه* به ورته وكړي.

او فرمايي: «مَا منْ قَوْمٍ يَقُومُونَ منْ مَجْلس لاَ يَذْكُرُونَ اللَّهَ فيه إلاّ قَامُوا عَنْ مثْلِ جيفَة حمَارٍ، وَكَانَ لَهُمْ حَسْرَةً»[٢].

❁ كوم قوم چي له يو داسي مجلس نه پاڅيده*، چي د الله ﷻ ذكر يې پكې نه وي كړى، نو داسي به وي لكه چي د خره د مرداري* نه پاڅيدلى وي، او دا به د دوى لپاره د افسوس سبب وي.

## ١- دخوب نه د پاڅيدو دعاګاني

١- «الْحَمْدُ للّه الَّذي أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَإلَيْه النُّشُورُ»[٣].

❁ ټولـه غوره ستاينه* الله لره ده، هغه چي مونږ يې پس له مرګه

(١) ترمذي، صحيح الترمذي ٣/١٤٠.
(٢) ابو داود ٤/٢٦٤، احمد ٢/٣٨٩، صحيح الجامع ٥/١٧٦.
(٣) بخاري (فتح الباري ١١/١١٣)، مسلم ٤/٢٠٨٣.

ژوندي کړي يو، او همده ته بيا ژوندي کيدل او ورتګ دی.

٢- «لاَ إِلَـــهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ، وَلَهُ الْحَمْـــدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، سُبْحَانَ اللَّهِ، وَالْحَمْدُ للَّه، وَلاَ إِلَـــهَ إِلاَّ اللَّهُ وَاللَّهُ أَكْبَرُ، وَلاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللَّهِ العَلِيِّ العَظِيمِ، رَبِّ اغْفِرْ لِي»[(١)].

❁ بيله الله نه بل څوک د عبادت وړ* نشته، هغه يو دی شريک نلري، همده لره ټولواکي او ټوله غوره ستاينه* ده، او همدی په هر څه قادر دی، پوره پاکي او ټوله غوره ستاينه يوازي الله لره ده، بيله* الله نه بل څوک د عبادت وړ* نشته ، الله لوی دی، او هيڅ قوت او طاقت نشـــته (د ګـــناه نـــه د ساتلو* او د نيکيو د کولو) مګر په اوچت او باعظمت الله ﷻ سره، پروردګاره ما ته بخښنه* وکړه.

٣- «الحَمدُ لله الّذي عَافَانِي فِي جَسَدِي، ورَدَّ عليَّ رُوحِي، وأَذنَ لِي بِذِكْرِهِ»[(٢)].

❁ ټولـــه غوره ستاينه * هغه الله لره ده چي ما ته يي په بدن کي

---

(١) خـــوک چي دا ووايي، ګناهونه به يي وبخښل شي، او که دعا وکړي، قبوله به شي، او که پاڅي اودس وکړي او بيا لمونځ وکړي، نو لمونځ به يي قبول شي.
بخـــاري (فـــتح الـــباري ٣/٣٩)، او نورو هم روايت کړيدی، او پورتنی لفظ د ابن ماجه دی، صحيح ابن ماجه ٢/٣٣٥.

(٢) ترمذي ٥/٤٧٣، صحيح الترمذي ٣/١٤٤.

روغتيا راكړي، او ما ته يې زما روح بيا را كړ، او ما ته يې د خپل ذكر اجازه او حكم كړى دى.

٤- ﴿إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ وَاخْتِلاَفِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لآيَاتٍ لِّأُوْلِي الألْبَابِ * الَّذِينَ يَذْكُرُونَ اللّهَ قِيَاماً وَقُعُوداً وَعَلَىَ جُنُوبِهِمْ وَيَتَفَكَّرُونَ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هَذا بَاطِلاً سُبْحَانَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ * رَبَّنَا إِنَّكَ مَن تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ أَخْزَيْتَهُ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ * رَّبَّنَا إِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِياً يُنَادِي لِلإِيمَانِ أَنْ آمِنُواْ بِرَبِّكُمْ فَآمَنَّا رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا سَيِّئَاتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الأبْرَارِ * رَبَّنَا وَآتِنَا مَا وَعَدتَّنَا عَلَى رُسُلِكَ وَلاَ تُخْزِنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّكَ لاَ تُخْلِفُ الْمِيعَادَ * فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ أَنِّي لاَ أُضِيعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِّنكُم مِّن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَى بَعْضُكُم مِّن بَعْضٍ فَالَّذِينَ هَاجَرُواْ وَأُخْرِجُواْ مِن دِيَارِهِمْ وَأُوذُواْ فِي سَبِيلِي وَقَاتَلُواْ وَقُتِلُواْ لأُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ وَلأُدْخِلَنَّهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ ثَوَاباً مِّن عِندِ اللّهِ وَاللّهُ عِندَهُ حُسْنُ الثَّوَابِ * لاَ يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ الَّذِينَ كَفَرُواْ فِي الْبِلاَدِ * مَتَاعٌ قَلِيلٌ ثُمَّ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمِهَادُ * لَكِنِ الَّذِينَ اتَّقَوْاْ رَبَّهُمْ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا نُزُلاً مِّنْ عِندِ اللّهِ وَمَا عِندَ اللّهِ خَيْرٌ لِّلأَبْرَارِ * وَإِنَّ مِنْ أَهْلِ

الْكتَاب لَمَن يُؤْمنُ باللّه وَمَا أُنزلَ إلَيْكُمْ وَمَآ أُنزلَ إلَيْهمْ خَاشعينَ
للّـــه لاَ يَشْتَرُونَ بآيَات اللّه ثَمَناً قَليلاً أُوْلَئكَ لَهُمْ أَجْرُهُمْ عندَ
رَبِّهـــمْ إنَّ اللّـــهَ سَريعُ الْحسَاب ۞ يَا أَيُّهَا الَّذينَ آمَنُواْ اصْبرُواْ
وَصَـــابرُواْ وَرَابطُـــواْ وَاتَّقُـــواْ اللّـــهَ لَعَلَّكُـــمْ تُفْلحُـــونَ﴾
[آل عمران: ۱۹۰-۲۰۰] (۱) .

۞ بې شکه چې په آسمانونو او ځمکه کې، او د شپې او ورځې په بدلیدلو کې د عقل خاوندانو لپاره نښې نښانې دي، هغه کسان چې د الله ذکـــر کوي پداسې حال کې چې ولاړ* وي، او ناست وي، او په ډډه* باندې وي، او دآسمانونو او ځمکې په پیدایښت کې سوچ او فکر کـــوي، (او وايي) ای زمونږ پروردګاره! دا (آسمانونه او ځمکه) دې خوشې او بې فایدې ندې پیدا کړي، پاکي ده تا لره، نو مونږ د دوزخ* له عذاب نه وساته. ای پروردګاره! بې شکه چې ته څوک دوزخ* ته واچـــوې نو په رښتیا سره تا هغه رسوا او ذلیل کړیدی، او ظالمانو لره هیڅوک مرستندوی نشته. ای پروردګاره! په رښتیا سره مونږ د آواز* کونکي (آواز) واورید چې ایمان ته یې بلنه* کوله (ویل یې) چې په خپل پروردګار ایمان راوړی، نو مونږ ایمان راوړ، ای زمونږ پروردګاره! زمونږ

(۱) بخاري (فتح الباري ۸/۲۳۷)، مسلم ۱/۵۳۰.

ګناهونه را ته وبخښه*، او زمونږ بد کارونه را نه لیري کړه، او مونږ ته لـــه نیکانو* سره مرګ راکړه. ای زمونږ پروردګاره! مونږ ته هغه څه راکړه چې د خپلو پیغمبرانو په (ذریعه) دې راسره وعده کړیده، او د قیامت په ورځ مو مه رسوا کوه، په رښتیا سره چې ته د وعدې مخالفت نکوې. نو د دوی پروردګار د دوی (دعا) قبوله کړه، (پدې شان) چې زه به له تاسو نه د هیڅ عمل کونکي عمل نه ضایع* کوم، نر وي او که ښځه، (ټول) یو له بل نه یاست، نو هغو کسانو چې هجرت یې کړی، او له خـــپلو کورونو نه ایستلې شوي، او زما په لاره* کې ورته اذیت رســـیدلی، او جهاد یې کړی، او وژل شویدي، نو خامخا به زه د دوی ګناهونه وبخښم، او هرو مرو* به دوی هغه جنتونو ته داخل کړم چې (دهغو دماڼیو او ونو) لاندې ویالې بهیږي، (او دا) د الله له جانبه جزا او ثواب دی، او د الله په نزد ډیر ښه ثواب او اجر دی. په ښارونو کې د کافرانو تلل را تلل دې تا نه تیر باسي. (دا) یو نا څیزه* متاع او فائده ده، او بیا د دوی ځای دوزخ دی، او ډیر بد د هستوګنې ځای دی. لیکن هغـــه کسان چې له خپل پروردګار نه ویریږي* او پرهیزګاري کوي، هغوی لره داسې جنتونه دي چې په هغه کې به ویالې رواني وي، تل* به پـــه هغه کې استوګن وي، (او دا) د الله له جانبه میلمستیا ده (هغوی لره)، او هغه څه چې د الله سره دي هغه د نیکانو لپاره (ډیر) غوره دي.

او په تحقیق سره د اهل کتاب نه داسي کسان شته چي په الله او په هغه (قــرآن) چي تاسو ته نازل کړي شویدی، او په هغه (تورات او انجیل) چي دوی ته نازل کړي شوی دی، ایمان لري، پداسي حال کي چي له الله نــه ویریدونکي دي، د الله آیاتونه په لږو پیسو نه خرخوي، د دي کسانو اجر او ثواب د الله سره دی، په رښتیا سره چي الله ژر حساب کونکی دی. ای مومنانو! صبر وکړی، او ټینګ اوسی (د دښمنانو په مقابل کي)، او جهاد ته تیار اوسی، او له الله نه وویریږی، ددي لپاره چي تاسو کامیابه شی.

## ۲- د جامو اغوستلو دعا

٥- «الحَمدُ لله الّذي كَسَاني هَذا (الثّوبَ) وَرَزَقَنيه مِنْ غَيرِ حَوْلٍ مِنّي ولا قُوّة..»[١].

۞ ټولــه غوره ستاینه* ده هغه الله لره چي ما ته یي دا جامه* را واغوستله، او بیله* کوم طاقت او قوت نه یي ما ته راکړه.

## ۳- دنوي جامي اغوستلو دعا

٦- «اللّهُــمَّ لَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ كَسَوْتَنيه، أَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِهُ وَخَيْرِ مَا صُنِعَ لَهُ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهِ وَشَرِّ مَا صُنِعَ لَهُ»[٢].

---

(١) بیله* نسائي نورو اصحاب السنن* روایت کړیدی، ارواء الغلیل ۷/۴۷.

(۲) ابو داود، ترمذي، او بغوي روایت کړیدی، شمائل الترمذي د البانی لیکنه ص۴۷.

❁ يـــا الهـــي! تا لره ټوله غوره ستاينه* ده، تا ما ته (دا جامه) را واغوستله، زه د هغې د خير ، او د څه لپاره چې جوړه شويده د هغه د خير سوال درنه كوم، او پناه غواړم په تا سره د هغې له شر نه او د هغه څه له شر نه كوم لپاره چې هغه جوړه شويده.

## ۴- چا چې نوې جامې واغوستلې هغه ته دعا

٧-«تُبْلِي، ويُخْلِفُ اللهُ تَعالى»[١].

❁ (دا جامه) زړه كړې، او الله دې د هغه په ځای نوري جامې در كړي.

٨- «الْبَسْ جَدِيداً، وَعِشْ حَمِيداً، وَمُتْ شَهِيداً»[٢].

❁ نـــوې (جامه) واغوندې، او ستايلى واوسيږې، او دشهادت په مرګ مړ شې.

## ۵- دجامو ايستلو په وخت كي دعا

٩- «بِسْمِ اللهِ»[٣].

❁ د الله په نوم سره (دا جامه اوباسم).

---

(١) ابو داود ۴۱/۴، صحيح ابي داود ٧٦٠/٢.
(٢) ابن ماجه ١١٧٨/٢، بغوي ۴۱/١٢، صحيح ابن ماجه ٢٧٥/٢.
(٣) تـــرمذي ٥٠٥/٢، او نـــورو هم روايت كړيدى، إرواء الغليل ۴٩ نمبر حديث، صحيح الجامع ٢٠٣/٣.

## ٦- د اودس ماتي ځای ته د داخليدلو دعا

۱۰- «[بِسْمِ اللهِ] اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ الْخُبْثِ وَالْخَبَائِثِ»(۱).

۞ د الله په نوم سره، الهي! زه په تا سره له نرينه او ښځينه شيطانانو نه پناه غواړم.

## ۷- د اودس ماتي ځای نه د وتلو دعا

۱۱- «غُفْرَانَكَ»(۲).

۞ ستا بخښنه غواړم.

## ۸- داوداسه نه مخکې ذکر

۱۲- «بِسْمِ اللهِ»(۳).

۞ د الله په نامه سره (اودس پيل کوم).

## ۹- د اودس نه وروسته دعا

۱۳-۱- «أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَـهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ

---

(۱) بخاري ۱/۴۵، مسلم ۱/۲۸۳، او دا اضافه: «بسم الله في أوله» سعيد بن منصور روايت کړيدی، فتح الباري ۱/۲۴۴.

(۲) بيله* نسائي نورو اصحاب السنن* روايت کړيدی، او نسائي په «عمل اليوم والليلة» کې روايت کړيدی، زاد المعاد ۲/۳۸۷.

(۳) ابو داود، ابن ماجه او احمد روايت کړيدی، إرواء الغليل ۱/۱۱۲.

وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّداً عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ..»[١].

❁ شاهدي* وركوم چي بيله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، هغه يو دی، شريک نلري، او شاهدي وركوم چي محمد د الله بنده او پيغمبر دی.

١٤-٢- «اللَّهُمَّ اجْعَلْنِي مِنَ التَّوَّابِينَ وَاجْعَلْنِي مِنَ الْمُتَطَهِّرِينَ»[٢].

❁ الهي! ما د توبه ايستونكو څخه وگرځوه، او د (پاكو) كسانو څخه مي وگرځوه.

١٥-٣- «سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ»[٣].

❁ الهي! تا په پاكي سره يادوم او ستا پوره ستاينه كوم، زه شاهدي* وركوم چي بيله تا نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، له تا نه بخښنه غواړم، او تا ته توبه وباسم.

## ١٠- د كور نه دوتلو ذكر

١٦-١- «بِسْمِ اللَّهِ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللَّهِ لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ

---

(١) مسلم ٢٠٩/١.

(٢) ترمذي ٧٨/١، صحيح الترمذي ١٨/١.

(٣) نسائي «عمل اليوم والليلة» ص١٧٣، إرواء الغليل ١٣٥/١، ٩٤/٢.

بِاللَّهِ»[١].

❁ د الله په نامه سره (له کور نه وځم)، په الله باندې توکل او تکيه کوم، او نشته هيڅ قوت او طاقت (له ګناه نه د ساتلو* او د نيکيو د کولو) مګر د الله جل جلاله (په توفيق) سره.

١٧-٢- «اللَّهُمَّ أَعُوذُ بِكَ أَنْ أَضِلَّ أَوْ أُضَلَّ أَوْ أَزِلَّ أَوْ أُزَلَّ أَوْ أَظْلِمَ أَوْ أُظْلَمَ أَوْ أَجْهَلَ أَوْ يُجْهَلَ عَلَيَّ»[٢].

❁ الهي! زه په تا سره پناه غواړم لدې نه چې زه بې لارې شم، يا مې بل څوک بې لارې کړي، يا وښويږم، يا وښويولی شم، يا ظلم وکړم، يا ظلم را سره وشي، يا (چا ته) ضرر او نقصان ورسوم، يا را ته (له بل چا نه) ضرر ورسولی شي.

## ١١- کور ته د ننوتلو* ذکر

١٨- «بِسْمِ اللَّهِ وَلَجْنَا وَبِسْمِ اللَّهِ خَرَجْنَا وَعَلَى رَبِّنَا تَوَكَّلْنَا ثُمَّ لِيُسَلِّمْ عَلَى أَهْلِهِ»[٣].

---

(١) ابو داود ٣٢٥/٤، ترمذي ٤٩٠/٥، صحيح الترمذي ١٥١/٣.
(٢) اصحاب السنن*، صحيح الترمذي ١٥٢/٣، صحيح ابن ماجه ٣٣٦/٢.
(٣) ابو داود ٣٢٥/٤، او علامه ابن باز په «تحفة الأخيار» ص٢٨ کې د دغه اسناد حَسَن بللی دی، او په صحيح حديث کې راغلي دي، د مسلم ٢٠١٨ نمبر حديث کې: کله چې سړی خپل کور ته ننوځي، او ننوتلو په وخت کې، او د خوراک په وخت کې الله ياد کړي، نو شيطان (خپلو ملګرو ته) وايي: زمونږ لپاره (دلته) نه د شپې ځای، او نه د (شپې) خوراک شته.

۞ د الله په نامه سره نَنَوتلو*، او د الله په نامه سره وَوَتلو*، او پر* خپل پروردگار مو توكل او تكيه كړېده.

او بيا دي په خپلو وړو* سلام وكړي.

## ۱۳- مسجد ته د تللو دعا

١٩- «اللَّهُـــمَّ اجْعَلْ فِي قَلْبِي نُوراً، وَفِي لِسَانِي نُوراً، وَفِي سَمْعِي نُوراً، وَفِي بَصَرِي نُوراً، وَمِنْ فَوْقِي نُوراً، وَمِنْ تَحْتِي نُوراً، وَعَنْ يَمِينِي نُوراً، وَعَنْ شِمَالِي نُوراً، وَمِنْ أَمَامِي نُوراً، وَمِنْ خَلْفِي نُـــوراً، وَاجْعَلْ فِي نَفْسِي نُوراً، وَأَعْظِمْ لِي نُوراً، وَعَظِّمْ لِي نُوراً، وَاجْعَـــلْ لِي نُوراً، وَاجْعَلْنِي نُوراً، اللَّهمَّ أَعْطِنِي نوراً، واجعَل فِي عَصَـــبِي نوراً، وفِي لَحْمِي نوراً، وفِي دَمِي نوراً، وفِي شَعْرِي نوراً، وفِي بَشَـــرِي نوراً»[1]، «[اللهمّ اجْعَلْ لِي نوراً في قَبْري.. ونوراً في عظَـــامي]»[2]، [«وَزِدْنِي نوراً، وزِدْنِي نوراً، وزِدْنِي نوراً»][3]، [«وَهَبْ لِي نوراً عَلَى نُور»][4].

(١) تـــول پورتـــني صـــفات پـــه بخاري ١١٦/١١ په ٦٣١٦ نمبر حديث كي راغلي دي، مسلم ٥٢٦/١، ٥٢٩، ٥٣٠، په ٧٦٣ نمبر حديث كي.

(٢) ترمذي ٣۴١٩ نمبر حديث، ۴٨٣/٥.

(٣) بخـــاري پـــه «الأدب المفـــرد» ٦٩٥ نمبر حديث، ص٢٥٨، كي روايت كړيدى، او ٲلباني په «صحيح الأدب المفرد» ٥٣٦ نمبر حديث كي د هغه اسناد صحيح بللى دى.

(٤) ابـــن حجـــر دا لفظ په فتح الباري كي اوابن ابو عاصم ته يي په كتاب الدعاء كي نسبت كړيدى، فتح الباري ١١٨/١١، او وايي: نو د مختلفو روايتونو نه پنځه ويشت خصلتونه راغونډ* شول.

۞ الهي! زما په زړه کي رڼا* پيدا کړې، او په ژبه کي مي رڼا، او په غوږونو کي مي رڼا، او په سترګو کي مي رڼا، او له پاسه مي رڼا، او لاندي مي رڼا، او له ښي طرف نه مي رڼا، او له چپ طرف نه مي رڼا، او مخي ته مي رڼا، او شا ته مي رڼا، او په بدن کي مي رڼا پيدا کړې، او ما ته رڼا د قدر وړ وګرځوې، او ما ته رڼا مقرره کړې، او ما رڼا وګرځوې، الهي! ما ته رڼا راکړې، زما په پلو* کي رڼا پيدا کړې، او په غوښه کي مي رڼا، او په وينه کي مي رڼا، او په ويښتو* کي مي رڼا، او په پوټکي* کي مي رڼا پيدا کړې.

الهي! زما په قبر کي رڼا پيدا کړې، او زما په هډوکو کي رڼا، او زما رڼا زياته کړې، او زما رڼا زياته کړې، او زما رڼا زياته کړې، او ما ته د رڼا بر سيره رڼا راکړې.

## ۱۳- مسجد ته د ننوتلو دعا

۲۰- «أَعُـــوذُ باللّه الْعَظيم وَبوَجْهه الْكَريم وَسُلْطَانه الْقَديم منْ الشَّيْطَان الرَّجيم»[(۱)]، [بسم اللّه، والصَّلاةُ][(۲)] [والسَّلامُ على رَسُول اللّه][(۳)] «اللَّهُمَّ افْتَحْ لِي أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ»[(٤)].

(۱) ابو داود، صحيح الجامع ۴۵۹۱ نمبر حديث.

(۲) ابن السني ۸۸ نمبر حديث، او الباني هغه حَسَن بللی دی.

(۳) ابو داود ۱/۱۲٦، صحيح الجامع ۱/۵۲۸.

(٤) مسلم ۱/۴۹۴، او په ابن ماجه کي له فاطمه رضي الله عنها نه داسي روايت دی: «اللهم اغفر لي ذنوبي وافتح لي أبواب رحمتك»، ترجمه: الهي! زما ګناهونه را ته وبخښې، او خپل د رحمت =

❁ په لوی الله سره، او د هغه په عزتمند مخ، او ازلي او همیشنی تولواکـــي سره، له رټل شوي شیطان نه پناه غوارم، د الله په نوم سره (نـــنوځم)، درود او سلام دي وي د الله پر پیغمبر ﷺ، الهي! ته را ته د خپل رحمت دروازې خلاصي* کړې.

## ۱۴- مسجد نه د وتلو دعا

٢١- «بسمِ اللهِ والصَّلاةُ والسلامُ على رسُولِ الله، اللَّهمَّ إنِّـــي أســـألُكَ مِـــنْ فَضْـــلِكَ، اللَّهُمَّ اعْصِمْني مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ»[1].

❁ د الله پـــه نـــوم سره (وځم)، او درود او سلام دي وي د الله پر پیغمبر، الهي! له تا نه ستا د فضل سوال کوم، الهي! له رټل شوي شیطان نه مي وساتې.

## ۱۵-د آذان اوریدو ذکرونه

٢٢-١- (د آذان پـــه جواب کي به) هماغه د مؤذن* الفاظ بیرته وایې، خو د «حيَّ على الصلاةِ» او «حيَّ على الفَلاحِ» (په جواب =

---

دروازې راته خلاصي* کړې.

او الباني هغه د شواهدو په وجه صحیح بللی دی، صحیح ابن ماجه ١/١٢٨-١٢٩.

(١) د مخکیـــني (٢٠) نمـــبر حدیـــث روایـــونه دي وکتل شي، او دا زیادت: «اللهم اعصمني من الشیطان الرجیم» د ابن ماجه دی، صحیح ابن ماجه ١/١٢٩.

کي به) «لا حَولَ ولا قُوَّةَ إلاّ بالله»[١] وايي.

٢٣-٢- د مؤذن* د «أَشْهَدُ أنْ لاَ إلَهَ» او «أَشْهَدُ أنَّ محمداً رَسُولُ الله» د ويلو وروسته به دا ذکر وايي[٢]:

«وَأَنَــا أَشْــهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ وَأَنَّ مُحَمَّــداً عَــبْدُهُ وَرَسُولُهُ، رَضِيتُ بِاللَّهِ رَبّاً، وَبِمُحَمَّدٍ رَسُولاً، وَبِالإِسْلاَمِ دِيناً»[٣].

❁ او زه هــم شاهدي* ورکوم چې بيله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، هغه يو دی، شريک نلري، او محمد د الله بنده او پيغمبر دی، د الله ﷻ په ربوبيت، او د محمد ﷺ په پيغمبرۍ، او د اسلام په دين راضي يم.

٢٤-٣- مؤذن ته د جواب* ورکولو نه وروسته به پر پيغمبر ﷺ درود وايي[٤].

٢٥-٤- او بــيا به دغه دعا وايي: «اللَّهُمَّ رَبَّ هَذه الدَّعْوَة التَّامَّة وَالصَّلاَة الْقَائِمَة، آت مُحَمَّداً الْوَسيلَةَ وَالْفَضيلَةَ، وَابْعَثْهُ

---

(١) بخاري ١/١٥٢، مسلم ١/٢٨٨.
(٢) ابن خزيمه ١/٢٢٠.
(٣) مسلم ١/٢٩٠.
(٤) مسلم ١/٢٨٨.

مَقاماً مَحْمُوداً الَّذي وَعَدْتَهُ [إنَّكَ لاَ تُخْلِفُ الميعَادَ]»[١].

۞ الهي! اى د دې مکملې بلنې، او د کيدونکې لمونځ پروردګاره! محمد ﷺ ته په جنت کې خاصه درجه، او خاص فضيلت ورکړې، او هغه ستايلى شوي مقام ته يې ورسوې کوم چې تا ورسره وعده کړيده، بې شکه چې ته د خپلې وعدې مخالفت نه کوې.

٢٦-٥- د آذان او اقامت په مينځ کې به خپل ځان ته دعا کوي، ځکه چې پدې وخت کې دعا نه رد* کيږي[٢].

## ١٦- د لمانځه د شروع (له اول تکبير نه وروسته*) دعا

٢٧-١- «اللَّهُمَّ بَاعِدْ بَيْنِي وَبَيْنَ خَطَايَايَ كَمَا بَاعَدْتَ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ، اللَّهُمَّ نَقِّنِي مِنْ خَطَايَايَ كَمَا يُنَقَّى الثَّوْبُ الأَبْيَضُ مِنْ الدَّنَسِ، اللَّهُمَّ اغْسِلْنِي مِنْ خَطَايَايَ بِالثَّلْجِ وَالْمَاءِ وَالْبَرَدِ»[٣].

۞ الهي! زما او زما د ګناهونو تر مينځ دومره لرې والى راولې، لکه څنګه چې دې د مشرق* او مغرب* په مينځ کې لرې والى راوستى دى،

(١) بخاري ١٥٢/١، او د کړو قوسونو په مينځ کې عبارت د بيهقي ٤١٠/١ دى، او اسناد يې علامه عبد العزيز بن باز په «تحفة الأخيار» ص٣٨ کې حسن بللى دى.

(٢) ترمذي، ابو داود، او احمد روايت کړيدى، ارواء الغليل ٢٦٢/١.

(٣) بخاري ١٨١/١، مسلم ٤١٩/١.

الهي! ما له خپلو ګناهونو نه داسي پاک کړې لکه څنګه چي سپينه جامه له خيرو* نه پاکه کړي شي، الهي! ما له ګناهونو نه په واوره، او اوبو، او ږلۍ سره ووينځې.

۲۸-۲- «سُـبْحَانَكَ اللَّهُـمَّ وَبِحَمْدِكَ، وَتَبَارَكَ اسْمُكَ، وَتَعَالَى جَدُّكَ وَلاَ إِلَهَ غَيْرُكَ»(۱).

۞ الهي! تا په پاکي سره يادوم او ستا پوره ستاينه کوم، او مبارک دی نوم ستا، او اوچت* دی شان او شوکت ستا، او بيله تا نه بل څوک د عبادت وړ* نشته.

۲۹- «وَجَّهْـتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي فَطَرَ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضَ حَنِـيفاً وَمَـا أَنَا مِنْ الْمُشْرِكِينَ، إِنَّ صَلاَتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ، لاَ شَرِيكَ لَهُ، وَبِذَلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا مِنْ الْمُسْـلِمِينَ، اللَّهُـمَّ أَنْتَ الْمَلِكُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ، أَنْتَ رَبِّي وَأَنَا عَبْدُكَ ظَلَمْتُ نَفْسِي وَاعْتَرَفْتُ بِذَنْبِي، فَاغْفِرْ لِي ذُنُوبِي جَمِيعاً، إِنَّـهُ لاَ يَغْفِـرُ الذُّنُوبَ إِلاَّ أَنْتَ، وَاهْدِنِي لأَحْسَنِ الأَخْلاَقِ، لاَ يَهْدِي لأَحْسَنِهَا إِلاَّ أَنْتَ، وَاصْرِفْ عَنِّي سَيِّئَهَا، لاَ يَصْرِفُ عَنِّي

(۱) څلـوررو واړو اصـحاب السـنن روايـت کړېدی، صحيح الترمذي ۱/۷۷، صحيح ابن ماجه ۱/۱۳۵.

سَـــيِّئَهَا إِلاَّ أَنْتَ، لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ، وَالْخَيْرُ كُلُّهُ بِيَدَيْكَ، وَالشَّرُّ لَيْسَ إِلَيْكَ، أَنَا بِكَ وَإِلَيْكَ، تَبَارَكْتَ وَتَعَالَيْتَ، أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ»(١).

❁ ما خپل مخ وګرځاوه هغه ذات ته چي آسمانونه او ځمکه يې پـــيدا کړيـــدي، پداسي حال کي چي د حق دين مل* يم، او نه يم له مشـــرکانو نه، په رښتيا سره زما لمونځ، او قرباني*، او ژوند، او مرګ يواځـــي د هغـــه الله لپاره دی چي د مخلوقاتو پروردګار دی، شريک نلري، او زه پدې سره مامور شوی يم، او زه له مسلمانانو څخه يم.

الهي! ته تولواک* يې، بيله تا نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، ته زما پروردګار يې، او زه دي بنده يم، په خپل ځان مي ظلم* کړی، او په خپله ګناه اقرار کوم، نو زما* ټول ګناهونه را ته وبخښې، په رښتيا سره چي ګناهونه بيله تا نه بل څوک نشي بخښلی، د ښو اخلاقو هدايت* راته وکړې، و ښو اخلاقو ته يواځي ته هدايت کوې، او بد اخلاق را څخـــه لـــري کړې، بد اخلاق را نه يواځي ته لري کولای شې، ستا دعوت مي قبول کړ، او ستا خدمت ته ولاړ يم، خير ټول ستا په لاسونو

(١) مسلم ١/٥٣٤.

کـــې دی، او شــــر تا لره شر ندی[۱]، او په تا مې تکيه ده، او تا ته به درځم، ته برکت والا یې، او اوچت* یې، له تا نه بخښنه غواړم، او تا ته توبه وباسم.

۳۰-٤- «اللّهُمَّ رَبَّ جَبْرَائِيلَ وَمِيكَائِيلَ وَإِسْرَافِيلَ، فَاطِرَ السَّــــمَاوَاتِ وَالأَرْضِ، عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ، أَنْتَ تَحْكُمُ بَيْنَ عِبَادِكَ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ، اهْدِنِي لِمَا اخْتُلِفَ فِيهِ مِنْ الْحَقِّ بِإِذْنِكَ، إِنَّكَ تَهْدِي مَنْ تَشَاءُ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ»[۲].

۞ الهي! د جبرايل، او ميکايل، او اسرافيل پروردګاره، د آسمانونو

---

(۱) د (والشر ليس إليك) علماوو مختلفې معناګانې ذکر کړيدي، له هغه جملې نه بعضې دادي:

۱- شــــر ستا په حق کې شر ندی، ځکه هغه ستا له عدل او حکمت نه مينځ ته راغلی، او هغه يواځې د مخلوق په حق کې شر دی.

۲- شر الله ته د نژديکت وسيله نده.

۳- يواځې د شر نسبت الله ﷻ ته نه کيږي، بلکه د خير نسبت به ورسره وي.

۴- شــــر د الله حضـــور ته نه پورته کيږي، بلکه يواځې خير او نيک عمل د هغه حضور ته پورته کيږي.

او چــا چـــې ددې جملې ترجمه داسې کړيده: (شر تا لره نه نسبت کيږي) نو دا ترجمه صحيح نده، ځکه د شر او خير دواړو نسبت الله ته کيږي او الله د دواړو خالق دی.

مســـلم د نــووي په شرح ۱۲۹۰ نمبر حديث، تحفة الأحوذي د جامع ترمذي شرح ۳۳۴۴ نمبر حديث، د حمود التويجري رساله (التنبيهات على رسالة الألباني في الصلاة) ص۱۲ دې وکتل شي.(ژباړن)

(۲) مسلم ۵۳۴/۱.

او ځمکې پیدا کونکیه، په پټو او ښکاره علم لرونکیه، ته د خپلو بندګانو په مینځ کې د اختلاف په وخت کې فیصله کوې، په خپل حکم سره ما ته د هغه حق ښودنه* وکړې، په کوم کې چې اختلاف شوی دی، په رښتیا سره چې همدا ته و سمې لارې ته هدایت او ښودنه کوې چا لره چې وغواړې.

٣١-٥- «اللَّـــهُ أَكْـــبَرُ كَبِيراً، اللَّهُ أَكْبَرُ كَبِيراً، اللَّهُ أَكْبَرُ كَبِيراً، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ كَثِيراً، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ كَثِيراً، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ كَثِيراً، وَسُبْحَانَ اللَّهِ بُكْرَةً وَأَصِيلاً» [ثلاثاً](١).

❁ الله ډیر لوی دی په لویې سره، الله ډیر لوی دی په لویې سره، الله ډیر لوی دی په لویې سره، او ټوله غوره ستاینه ده الله لره ډیره زیاته، او ټولـــه غوره ستاینه ده الله لره ډیره زیاته، او ټوله غوره ستاینه ده الله لـــره ډیـــره زیاتـــه، او پـــه پـــاکې سره یادوم الله سهار* او ماښام*.

[دا به درې خلې* وایې]

او بیا به دا وایې: «أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْ الشَّيْطَانِ، مِنْ نَفْخِهِ، وَنَفْثِهِ،

(١) ابـــو داود ١/٢٠٣، ابن ماجه ١/٢٦٥، احمد ٤/٨٥، او مسلم ١/٤٢٠ له ابن عمر نه په همدا شان له یوې قصې سره روایت کړیدی.

وَهَمْزِه» (۱).

۞ په الله سره د شيطان له پوکلو، توکولو، او وسوسو نه پناه غواړم.

۳۲-۶- (۲) «اللَّهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ نُورُ السَّموات وَالأَرْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ، ولَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ قَيِّمُ السَّموات وَالأَرْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ، [وَلَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ رَبُّ السَّموات وَالأَرْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ] [وَلَكَ الْحَمْدُ لَكَ مُلْكُ السَّموات وَالأَرْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ] [وَلَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ مَلكُ السَّموات وَالأَرْضِ] [وَلَكَ الْحَمْدُ] [أَنْتَ الْحَقُّ، وَوَعْدُكَ الْحَقُّ، وَقَوْلُكَ الْحَقُّ، وَلقَاؤُكَ الحَقُّ، وَالْجَنَّةُ حَقٌّ، وَالنَّارُ حَقٌّ، وَالنَّبِيُّونَ حَقٌّ، وَمُحَمَّدٌ ﷺ، حَقٌّ وَالسَّاعَةُ حَقٌّ] [اللَّهُمَّ لَكَ أَسْلَمْتُ، وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ، وَبكَ آمَنْتُ، وَإِلَيْكَ أَنبتُ، وَبكَ خَاصَمْتُ، وَإِلَيْكَ حَاكَمْتُ، فَاغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ، وَمَا أَخَّرْتُ، وَمَا أَسْرَرْتُ، وَمَا أَعْلَنْتُ] [أَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَأَنْتَ الْمُؤَخِّرُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ] [أَنْتَ إِلَهِي لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنتَ]» (۳).

---

(۱) مخکيني تخريج دي و کتل شي.(ژباړن)

(۲) کله چي به پيغمبر ﷺ د شپې لخوا تهجد ته پاځيده نو دا ذکر به يې وايه.

(۳) بخاري (فتح الباري ۳/۳، ۱۱۶/۱۱، ۳۷۱/۱۳، ۴۲۳، ۴۶۵)، مسلم په اختصار سره همدا شان ۵۳۲/۱ روايت کړيدی.

۞ الهي! تا لره ټوله غوره ستاینه* ده، ته د آسمانونو او ځمکي او د هغو په مینځ کي مخلوقاتو رڼا* یې، او تا لره ټوله غوره ستاینه ده، ته د آسمانونو او ځمکي او د هغو په مینځ کي مخلوقاتو پالونکی یې، او تا لره ټوله غوره ستاینه ده، ته د آسمانونو او ځمکي او د هغو په مینځ کي مخلوقــاتو مالک یې، او تا لره ټوله غوره ستاینه ده، ته د آسمانونو او ځمکي او د هغو په مینځ کي مخلوقاتو پادشاه یې، او تا لره ټوله غوره ستاینه ده، ته حق یې، او وعده دي حق ده، او وینا دي حق ده، او تا ســره ملاقــات حق دی، او جنت حق دی، او دوزخ* حق دی، او پیغمبران حق دي، او محمد ﷺ حق دی، او قیامت حق دی.

الهــي! تا ته تسلیم* یم، او په تا مي توکل* دی، او په تا مي ایمان دی، او تــا لره مي رجوع کړې، او ستا لپاره او ستا په مرسته مي (له دښمن سره) جګړه کړې، او تا ته مي فیصله دروړې، نو ما ته (د هغو ګناهونو) بخښنه وکړې چي مخکي مي کړي، او وروسته مي کړي، او پــټ مــي کــړي، او ښکاره مي کړي دي، ته مخکي کونکی او ته وروســته کونکی یې، بیله تا نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، ته مي معبود* یې، بیله تا نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته.

## ۱۷- د رکوع دعا

۳۳-۱- «سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ» [ثلاث مرات][1].

۞ پاک دی زما* لوی پروردګار. [دري ځلې]

۳٤-۲- «سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ رَبَّنَا وَبِحَمْدِكَ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي»[2].

۞ اې الله! (اې) زمونږ پروردګاره! تا په پاکي سره يادوم، او ستا پوره ستاينه کوم، الهي! ما ته بخښنه وکړې.

۳۵-۳- «سُبُّوحٌ، قُدُّوسٌ، رَبُّ الْمَلَائِكَةِ وَالرُّوحِ»[3].

۞ ډير پاک او ډير مقدس دی پروردګار د ملائکو* او د جبرائيل.

۳٦-٤- «اللَّهُمَّ لَكَ رَكَعْتُ، وَبِكَ آمَنْتُ، وَلَكَ أَسْلَمْتُ، خَشَعَ لَكَ سَمْعِي، وَبَصَرِي، وَمُخِّي، وَعَظْمِي، وَعَصَبِي، وَمَا اسْتَقَلَّتْ بِهِ قَدَمِي»[4].

۞ الهي! خاص تا ته مي سر ټيټ کړی، او په تا مي ايمان راوړی، او تا ته تسليم* يم، او تسليم دي تا لره زما* غوږونه، او زما سترګي، او

(۱) اصحاب السنن او احمد روايت کړيدی، صحيح الترمذي ۸۳/۱.

(۲) بخاري ۹۹/۱، مسلم ۳۵۰/۱.

(۳) مسلم ۳۵۳/۱، ابو داود ۲۳۰/۱.

(٤) مسلم ۵۳۴/۱، او بيله ابن ماجه څلورو روايت کړيدی.

زما ماغزه*، او زما هډوكي، او زما پلې*، او زما هغه (جسم) كُوم چې زما پښو* اوچت كړيدى.

٣٧-٥- «سُبْحَانَ ذِي الْجَبَرُوتِ، وَالْمَلَكُوتِ، وَالْكِبْرِيَاءِ، وَالْعَظَمَةِ» (١).

۞ پاک دی څښتن* د ډير زور، او كاملې ټولواكې، او د لويې، او عظمت.

## ١٨- د ركوع نه پورته كيدلو* دعا

٣٨-١- «سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ» (٢).

۞ قبول كړه الله (حمد او ثنا) د هغه چا چې د هغه حمد او ثنا يې وويل.

٣٩-٢- «رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ، حَمْداً كَثِيراً طَيِّباً مُبَارَكاً فِيهِ» (٣).

۞ اې زمونږ پروردګاره! تا لره ټوله غوره ستاينه ده، ستاينه ډيره زياته، پاكه، او مباركه.

---

(١) ابو داود ١/٢٣٠، نسائي، او احمد روايت كړيدى، او اسناد يې حَسَن دى.

(٢) بخاري (فتح الباري ٢/٢٨٢).

(٣) بخاري (فتح الباري ٢/٢٨٤).

٤٠-٣- «مِلْءَ السَّمَاوَاتِ وَ مِلْءَ الأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا، وَمِلْءَ مَا شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدُ، أَهْلَ الثَّنَاءِ وَالْمَجْدِ، أَحَقُّ مَا قَالَ الْعَبْدُ، وَكُلُّنَا لَكَ عَبْدٌ، اللَّهُمَّ لاَ مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ، وَلاَ مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ، وَلاَ يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ»(۱).

❁ (الهي! تا لره تولة غوره ستاينه* ده) د آسمانونو او ځمکې او د هغوى تر مينځ د مخلوقاتو د ډکوالي په اندازه، او په اندازه د ډکوالي د هغو شيانو* چې تا وروسته غوښتې دي، اې د ستاينې او لويي خاونده! کومه ربښتيني خبره چې بنده کړيده داده -او مونږ ټول ستا بندګان يو-: الهي! ته چې (چا ته) څه ورکړې، د هغه (څوک) بندونکی نشته، او ته چې (له چا نه) څه بند کړې، د هغه (څوک) ورکونکی نشته، او فائده نه کوي مالدار لره دهغه مال، ستا د عذاب (لرې کولو کې).

## ۱۹- د سجدې دعا

٤١-۱- «سُبْحَانَ رَبِّيَ الأَعْلَى» [ثلاث مرات](۲).

❁ پاک دی زما* لوی پروردګار. [درې ځلې]

٤٢-۲- «سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ رَبَّنَا وَبِحَمْدِكَ اللَّهُمَّ اغْفِرْ

---

(۱) مسلم ۱/۳۴٦.

(۲) اصحاب السنن او احمد روايت کړيدی، صحيح الترمذي ۱/۸۳.

لِي»[١].

۞ اې الله! (اې) زمونږ پروردګاره! تا په پاکۍ سره يادوم، او ستا پوره ستاينه کوم، الهي! ما ته بخښنه وکړې.

٤٣-٣- «سُبُّوحٌ قُدُّوسٌ رَبُّ الْمَلاَئِكَةِ وَالرُّوحِ»[٢].

۞ ډېر پاک او ډېر مقدس دی پروردګار د ملائکو* او د روح (يا جبرائيل).

٤٤-٤- «اللَّهُـمَّ لَـكَ سَـجَدْتُ، وَبِكَ آمَنْتُ، وَلَكَ أَسْـلَمْتُ، سَـجَدَ وَجْهِي لِلَّذِي خَلَقَهُ، وَصَوَّرَهُ، وشَقَّ سَمْعَهُ وَبَصَرَهُ، تَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ»[٣].

۞ الهـي! تا لره مې سجده وکړه، او په تا مې ايمان راوړ، او تا ته تسليم شوم، زما مخ هغه ذات لره سجده وکړه چې هغه يې پيدا کړى، او صورت او شکل يې ورکړى، او غوږونه او سترګې يې ورکړي دي، با برکته* دى الله چې له ټولو نه غوره پيدا کونکى دى.

٤٥-٥- «سُـبْحَانَ ذِي الْجَبَرُوتِ وَالْمَلَكُوتِ وَالْكِبْرِيَاءِ

---

(١) بخاري، او مسلم روايت کړيدى، تخريج يې په (٣٤) نمبر حديث کې تېر شو.
(٢) مسلم ١/٥٣٣، اوتخريج يې په (٣٥) نمبر حديث کې تېر شو.
(٣) مسلم ١/٥٣٤ او نورو روايت کړيدى.

وَالْعَظَمَةَ»[1].

۞ پاک دی ښښتن* د زبرځواکي، او کاملي ټولواکي، او د لويي، او عظمت.

٤٦-٦- «اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي ذَنْبِي كُلَّهُ، دِقَّهُ، وَجِلَّهُ، وَأَوَّلَهُ، وَآخِرَهُ، وَعَلاَنِيَتَهُ، وَسِرَّهُ»[2].

۞ الهي! زما واړه او لوی، لومړني او وروستني، ښکاره او پټ ټول ګناهونه وبخښې.

٤٧-٧- «اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِرِضَاكَ مِنْ سَخَطِكَ وَبِمُعَافَاتِكَ مِنْ عُقُوبَتِكَ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْكَ لاَ أُحْصِي ثَنَاءً عَلَيْكَ أَنْتَ كَمَا أَثْنَيْتَ عَلَى نَفْسِكَ»[3].

۞ الهي! زه ستا په رضا سره ستا له غضب نه، او ستا په عافيت سره ستا له عذاب نه، او په تا سره له تا نه پناه غواړم[4]، زه ستا پوره

(۱) ابو داود ۱/۲۳۰، احمد، او نسائي روايت کړيدی، او الباني په صحيح ابي داود ۱/۱٦٦ کي صحيح بللی دی.

(۲) مسلم ۱/۳۵۰.

(۳) مسلم ۱/۵۳۲.

(٤) له الله ﷻ نه په الله سره د پناه غوښتلو مقصد: په الله سره دده د جلالي صفاتو لکه غضب، قهر، جبروت او نورو داسي صفاتو له آثارو نه پناه غوښتل دي.(ژباړن)

ستاینه نشم کولای، ته هماغسي يې لکه څنګه چې تا د ځان ستاینه کړیده.

## ۳۰- د دوو سجدو په مينځ کي دعا

٤٨-١- «رَبِّ اغْفِرْلِي، رَبِّ اغْفِرْلِي»[1].

۞ اې پروردګاره! ما ته بخښنه وکړه، اې پروردګاره! ما ته بخښنه وکړه.

٤٩-٢- «اللَّهُمَّ اغْفِرْلِي، وَارْحَمْنِي، واهْدِنِي، وَاجْبُرْنِي، وَعَافِنِي، وَارْزُقْنِي، وَارْفَعْنِي»[2].

۞ الهي! ما ته بخښنه وکړې، او په ما رحم وکړې، او هدايت را ته وکړې، او نقصان مي پوره کړې، او ما ته عافيت* راکړې، او روزي را ته راکړې، او (زما مقام) اوچت* کړې.

## ۳۱- د تلاوت د سجدي دعا

٥٠-١- «سَجَدَ وَجْهِي لِلَّذِي خَلَقَهُ، وَشَقَّ سَمْعَهُ وَبَصَرَهُ بِحَوْلِهِ وَقُوَّتِهِ، ﴿فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ﴾»[3].

(١) ابو داود ٢٣١/١، صحيح ابن ماجه ١٤٨/١.

(٢) بيله نسائي نه اصحاب السنن روايت کړيدی، صحيح ترمذي ٩٠/١، صحيح ابن ماجه ١٤٨/١.

(٣) ترمذي ٤٧٤/٢، احمد ٣٠/٦، حاکم ٢٢٠/١ او هغه يې صحيح بللی، او ذهبي ورسره موافقه =

۞ زما مخ هغه ذات لره سجده وکړه چې هغه یې پیدا کړی، او غوږونه او سترګې یې ورکړي دي، په خپل قدرت او طاقت سره، نو* با برکته* دی الله، چې له ټولو نه ښه پیدا کونکی دی.

٥١-٢- «اللَّهُمَّ اكْتُبْ لِي بِهَا عِنْدَكَ أَجْراً، وَضَعْ عَنِّي بِهَا وِزْراً، وَاجْعَلْهَا لِي عِنْدَكَ ذُخْراً، وَتَقَبَّلْهَا مِنِّي كَمَا تَقَبَّلْتَهَا مِنْ عَبْدِكَ دَاوُدَ»[١].

۞ الهي! ته ددې (سجدې) په بدل کې ما ته د خپل ځان سره اجر ولیکه، او په هغه سره له ما نه د ګناه (بار*) کښته* کړه، او هغه له خپل ځان سره زما لپاره توښه* وګرځوه، او له ما نه یې داسې قبوله کړې، لکه څنګه چې دې له خپل بنده داود عليه السلام نه قبوله کړې ده.

## ٣٢- د تشهد دعا (التحيات)

٥٢- «التَّحِيَّاتُ لِلَّهِ، وَالصَّلَوَاتُ، وَالطَّيِّبَاتُ، السَّلاَمُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ، السَّلاَمُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللَّهِ الصَّالِحِينَ، أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّداً عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ»[٢].

---

= کړیده، او زیادت هم دده دی.

(١) ترمذي ٢/٤٧٣، حاکم ١/٢١٩ او هغه یې صحیح بللی، او ذهبي ورسره موافقه کړیده.

(٢) بخاري (فتح الباري ١/١٣)، مسلم ٣٠١.

۞ ژبني او بدني او مالي عبادتونه ټول الله لره دي، سلام او د الله رحمت او بركتونه دي وي پر تا اې پيغمبره! سلام دي وي پر موږ او د الله پــــر نيكو بندګانو، زه شاهدي* وركوم چي بيله الله نه بل د عبادت وړ* معـــبود* نشته، او شاهدي وركوم چي محمد د الله بنده او پيغمبر دی.

## ٢٣- له (التحيات) نه وروسته پر* پيغمبر ﷺ درود

٥٣-١- «اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّد وَعَلَى آلِ مُحَمَّد، كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، إِنَّكَ حَميدٌ مَجيدٌ، اللَّهُمَّ بَـــارِكْ عَلَى مُحَمَّد وَعَلَى آلِ مُحَمَّد، كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، إِنَّكَ حَميدٌ مَجيدٌ»(١).

۞ الهـــي! پر محمد او د محمد پر اهل وعيال درود ولېږه، لكه څنګه چي دي پر ابراهيم عليه السلام او د ابراهيم عليه السلام پر اهل و عيال درود لېږلی دی، په رښتيا سره ته ستايلی شوی، د لويي خاوند يې، او بركت نازل كړه پر محمد او د هغه پر اهل وعيال باندي، لكه څنګه چي دي بركت نازل كړی دی پر ابراهيم عليه السلام او د هغه پر اهل وعيال باندي، په رښتيا سره ته ستايل شوی، د لويي خاوند يې.

---

(١) بخاري (فتح الباري ٦/٤٠٨).

٥٤-٢- «اللَّهُـــمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعلى أَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعلى أَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ»(١).

۞ الهي! پر محمد او د هغه پر بيبيانو او اولادونو درود ولېږه، لکه څـــنګه چې دې پر ابراهيم عليه السلام او د هغه پر ښځو او اولادونو درود لېږلی دی، او برکت نازل کړه پر محمد او د هغه پر ښځو او اولادونو، لکه څنګه چې دې برکت نازل کړی دی پر ابراهيم عليه السلام او د هغه پر ښځو او اولادونو، ته ستايل شوی، د لوېي خاوند يې.

## ٢۴- په وروستی ناسته کې د سلام نه مخکې دعا

٥٥-١- «اللَّهُـــمَّ إِنِّـــي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، وَمِنْ عَذَابِ جَهَنَّمَ، وَمِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ، وَمِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ»(٢).

۞ الهي! زه په تا سره پناه غواړم د قبر له عذاب نه، او د دوزخ* له عـــذاب نه، او د ژوند او مرګ له فتنو نه، او د مسيح دجال د فتنې له شر نه.

---

(١) بخاري (فتح الباري ٦/٤٠٧)، مسلم ١/٣٠٦، او پورتنی لفظ د مسلم دی.

(٢) بخاري ٢/١٠٢، مسلم ١/٤١٢، او پورتنی لفظ د مسلم دی.

٥٦-٢- «اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا والْمَمَاتِ، اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْمَأْثَمِ وَالْمَغْرَمِ»(١).

۞ الهي! زه په تا سره د قبر له عذاب نه پناه غواړم، او په تا سره د مسيح دجال د فتنې له شر نه پناه غواړم، او په تا سره د ژوند او مرګ د فتنو نه پناه غواړم، الهي! زه په تا سره د ګناه او (ناروا او توان نه بهر) قرض اخيستلو(٢) نه پناه غواړم.

٥٧-٣- «اللَّهُمَّ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي ظُلْماً كَثِيراً، وَلاَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلاَّ أَنْتَ، فَاغْفِرْ لِي مَغْفِرَةً مِنْ عِنْدِكَ وَارْحَمْنِي، إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ»(٣).

۞ الهي! ما پر خپل ځان ډير ظلم* کړی دی، او بيله تا نه بل څوک ګناهونه نشي بخښلای، نو ما ته له خپل جانب نه بخښنه* وکړه، او پر ما رحم وکړه، په رښتيا سره همدا ته ډير بخښونکی زيات مهربان يې.

---

(١) بخاري ١/٢٠٢، مسلم ١/٤١٢.

(٢) او هغه قرض چې د ناروا کارونو کولو لپاره نه وي، او يا له ادا کولو نه يې عاجز نه وي، له هغه نه پناه نه غوښتل کيږي.(ژباړن)

(٣) بخاري ٨/١٦٨، مسلم ٤/٢٠٧٨.

٥٨-٤- «اللّهُـمَّ اغْفِـرْ لي مَا قَدَّمْتُ، وَمَا أَخَّرْتُ، وَمَا أَسْرَرْتُ، وَمَا أَعْلَنْتُ، وَ مَا أَسْرَفْتُ، ومَا أنتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي، أَنْتَ الْمُقَدِّمُ، وَأَنْتَ الْمُؤَخِّرُ، لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ»[1].

❁ الهي! زما هغه ګناه وبخښې چې ما مخکې کړې او وروسته مې کـړې، پټـه مې کړې، او ښکاره مې کړیده، او هغه څه چې ما پکې اسراف او زیادت کړی، او هغه (ګناه) چې ته په هغه له ما نه ښه خبر یـې، ته مخکې کونکی یې، او ته وروسته کونکی یې، بیله تا نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته.

٥٩-٥- «اللَّهُـمَّ أَعِـنِّي عَلَى ذِكْرِكَ، وَشُكْرِكَ، وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ»[2].

❁ الهي! ما ته ستا په ذکر کولو، شکر کولو، او ښه عبادت کولو مدد او توفیق راکړې.

٦٠-٦- «اللَّهُـمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ الْبُخْلِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ الْجُبْنِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ أَنْ أُرَدَّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ

---

(١) مسلم ١/٥٣٤.

(٢) ابو داود ٢/٨٦، نسائي ٣/٥٣، او الباني هغه په صحیح ابي داود ١/٢٨٤ کې صحیح بللی دی.

فِتْنَةِ الدُّنْيَا وعَذَابِ الْقَبْرِ»[(١)].

۞ الهـــي! زه په تا سره له بُخل* نه پناه غوارم، او په تا سره له بې زړه توب* نه پناه غوارم، او په تا سره و سپک عمر[(٢)] ته له رسيدو نه پناه غوارم، او په تا سره د دنيا له فتنې، او د قبر له عذاب نه پناه غوارم.

٦١-٧- «اللَّهُـــمَّ إِنِّـــي أَسْـــأَلُكَ الْجَنَّةَ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ النَّارِ»[(٣)].

۞ الهي! زه له تا نه د جنت سوال كوم، او په تا سره له دوزخ* نه پناه غوارم.

٦٢-٨- «اللَّهُـــمَّ بعلمكَ الْغَيْبَ، وَقُدْرَتكَ عَلَى الْخَلْق، أَحْيِنِي مَا عَلِمْتَ الْحَيَاةَ خَيْراً لِي، وَتَوَفَّنِي إِذَا عَلِمْتَ الْوَفَاةَ خَيْراً لِـــي، اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَشْيَتَكَ فِي الْغَيْبِ وَالشَّهَادَة، وَأَسْأَلُكَ كَلِمَـــةَ الْحَـــقِّ فِي الرِّضَا وَالْغَضَب، وَأَسْأَلُكَ الْقَصْدَ فِي الْغِنَى والْفَقْـــرِ ، وَأَسْأَلُكَ نَعِيماً لاَ يَنْفَدُ، وَأَسْأَلُكَ قُرَّةَ عَيْنٍ لاَ تَنْقَطِعُ، وَأَسْـــأَلُكَ الرِّضَا بَعْدَ الْقَضَاءِ، وَأَسْأَلُكَ بَرْدَ الْعَيْشِ بَعْدَ الْمَوْتِ،

---

(١) بخاري (فتح الباري ٦/٣٥).

(٢) سپک عمر نه مراد بوډاتوب او د کمزورتيا عمر دى، چې د هيڅ کار کولو توان ورسره نه وي، او خپل خلمت لپاره هم بل چا ته محتاج وي.(ژباړن)

(٣) ابو داود، صحيح ابن ماجه ٢/٣٢٨.

وَأَسْــأَلُكَ لَذَّةَ النَّظَرِ إِلَى وَجْهِكَ وَالشَّوْقَ إِلَى لِقَائِكَ، فِي غَيْرِ ضَــرَّاءَ مُضِرَّةٍ، وَلاَ فِتْنَةٍ مُضِلَّةٍ، اللَّهُمَّ زَيِّنَّا بِزِينَةِ الإِيمَانِ، وَاجْعَلْنَا هُدَاةً مُهْتَدِينَ»[1].

۞ الهي! په غیبو باندي ستا په علم سره، په مخلوقاتو باندي ستا په قدرت سره (سوال کوم) چي ما ته هغه پوري ژوند راکړې چي ته زما لپاره ژوند بهتر ګڼې، او ما ته هله* مرګ راکړې، چي ستا په علم کي مــــرګ را ته بهتر وګڼې، الهي! زه په پټه او ښکاره کي ستا نه د ویري سوال کوم، او د خوشحالی او خفګان په وخت د حق ویلو سوال در نه کوم، او په مالداری او غریبی کي د میانه روی سوال درنه کوم، او د داســـي نعمـــت سوال درنه کوم چي ختمیدونکی نه وي، او د داسي خوشـــحالی سوال درنه کوم چي پریکیدونکې* نه وي، په قضاء وقدر باندي د راضي کیدلو سوال درنه کوم، له مرګ نه وروسته د ښه ژوند سوال درنه کوم، او ستا مخ ته د کتلو د خوند او لذت، او ستا ملاقات ته دشوق سوال درنه کوم، او په شوق سره ستا د ملاقات (سوال درنه کوم)، چي له هغه سره زیان رسونکی تکلیف، او ګمراه کونکې فتنه نه

---

(۱) نســـائي ۵۴،۵۵/۴، احمـــد ۳۶۴/۴، او الباني هغه په صحیح النسائي ۲۸۱/۱ کي صحیح بللی دی.

وي، الهي! د ايمان په ګاڼو* سره مو سمبال* کړې، او له هدايت شويو هدايت کونکو نه مو وګرځوې.

٦٣-٩- «اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ يَا أَللَّهُ بِأَنَّكَ الْوَاحِدُ الأَحَدُ الصَّمَدُ الَّذِي لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُواً أَحَدٌ أَنْ تَغْفِرَ لِي ذُنُوبِي إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ»[(١)].

۞ الهي! زه له تانه سوال کوم پدې چې اى الله! ته بيشکه ايکي يو

(١) نسائي ٣/٥٢ په همدا لفظ سره روايت کړی دی، احمد ۴/٣٣٨، او الباني په صحيح النسائي
١/٢٨٠ کي صحيح بللی دی. نسائي ٣/٥٢ په همدا لفظ سره روايت کړی دی، احمد
۴/٣٣٨، او الباني په صحيح النسائي ١/٢٨٠ کي صحيح بللی دی. نسائي ٣/٥٢ په همدا
لفظ سره روايت کړی دی، احمد ۴/٣٣٨، او الباني په صحيح النسائي ١/٢٨٠ کي صحيح
بللی دی. نسائي ٣/٥٢ په همدا لفظ سره روايت کړی دی، احمد ۴/٣٣٨، او الباني په
صحيح النسائي ١/٢٨٠ کي صحيح بللی دی. نسائي ٣/٥٢ په همدا لفظ سره روايت کړی
دی، احمد ۴/٣٣٨، او الباني په صحيح النسائي ١/٢٨٠ کي صحيح بللی دی. نسائي ٣/٥٢
په همدا لفظ سره روايت کړی دی، احمد ۴/٣٣٨، او الباني په صحيح النسائي ١/٢٨٠ کي
صحيح بللی دی. نسائي ٣/٥٢ په همدا لفظ سره روايت کړی دی، احمد ۴/٣٣٨، او الباني
په صحيح النسائي ١/٢٨٠ کي صحيح بللی دی. نسائي ٣/٥٢ په همدا لفظ سره روايت
کړی دی، احمد ۴/٣٣٨، او الباني په صحيح النسائي ١/٢٨٠ کي صحيح بللی دی. نسائي
٣/٥٢ په همدا لفظ سره روايت کړی دی، احمد ۴/٣٣٨، او الباني په صحيح النسائي
١/٢٨٠ کي صحيح بللی دی. نسائي ٣/٥٢ په همدا لفظ سره روايت کړی دی، احمد
۴/٣٣٨، او الباني په صحيح النسائي ١/٢٨٠ کي صحيح بللی دی. نسائي ٣/٥٢ په همدا
لفظ سره روايت کړی دی، احمد ۴/٣٣٨، او الباني په صحيح النسائي ١/٢٨٠ کي صحيح
بللی دی. نسائي ٣/٥٢ په همدا لفظ سره روايت کړی دی، احمد ۴/٣٣٨، او الباني په
صحيح النسائي ١/٢٨٠ کي صحيح بللی دی.

يې، بې نيازه يې، (هغه ذات يې چې) څوک يې ندي زيږولي، او نه هغه له بل چا نه زيږيدلی دی، او هيڅ څوک هغه لره سيال نشته، نو ما لره زما ګناهونه وبخښې، په رښتيا سره همدا ته بخښونکی مهربان يې.

٦٤-١٠- «اللَّهُـمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ بِأَنَّ لَكَ الْحَمْدَ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ وَحْدَكَ لاَ شَرِيكَ لَكَ، الْمَنَّانَ، يَا بَدِيعَ السَّموات وَالأَرْضِ، يَـا ذَا الْجَـلاَلِ وَالإِكْرَامِ، يَا حَيُّ يَا قَيُّومُ، إِنِّي أَسْأَلُكَ الْجَنَّةَ، وَ أَعُوذُ بِكَ مِنَ النَّارِ»[١].

۞ الهي! زه درنه سوال کوم پدې چې تا لره ټوله غوره ستاينه ده، بيله تا نه بـل د عـبادت وړ* معبود* نشته، يو يې، شريک نلرې، زيات احسان کونکی يې، ای د آسمانونو او ځمکې پيدا کونکيه! ای د لويي او عزت ورکولو څښتنه! ای د هميشني* ژوند خاونده! ای (د کائناتو*) پالونکيه! زه له تا نه د جنت سوال کوم، او په تا سره له دوزخ* نه پناه غواړم.

٦٥-١١- «اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ بِأَنِّي أَشْهَدُ أَنَّكَ أَنْتَ اللَّهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْـتَ الأَحَـدُ الصَّـمَدُ الَّـذِي لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُواً أَحَدٌ»[٢].

---

(١) اصحاب السنن روايت کړی، صحيح ابن ماجه ٣٢٩/٢.

(٢) ابـو داود ٦٢/٢، تـرمذي ٥١٥/٥، ابـن ماجه ١٢٦٧/٢، احمد ٣٦٠/٥، صحيح ابن ماجه ٣٢٩/٢، صحيح الترمذي ١٦٣/٣.

۞ الهي! زه له تا نه سوال کوم پدې چې زه شاهدي* ورکوم چې ته الله يـــي، بيله تا نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، ته ايکي يو يې، هغه بې نـــيازه ذات يـــي، چې څوک يې ندي زيږولي، او نه هغه له بل چا نه زيږيدلی دی، او هيڅ څوک هغه لره سيال نشته.

## ۳۵- د سلام گرځولو نه وروسته اذکار

٦٦-١- أَسْتَغْفِرُ اللهَ [ثلاثاً](1).

۞ له الله نه بخښنه غواړم. [درې ځلي*]

«اللَّهُمَّ أَنْتَ السَّلاَمُ، وَمِنْكَ السَّلاَمُ، تَبَارَكْتَ يَا ذَا الْجَلاَلِ وَالإِكْرَامِ»(2).

۞ الهي! ته له ټولو عيبونو نه پاک يې، او سلامتيا ستا له جانبه ده، با برکته* ذات يې، ای د لويي او عزت ورکولو څښتنه!.

٦٧-٢- «لاَ إِلَـــهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَديرٌ، اللَّهُمَّ لاَ مَانعَ لمَا أَعْطَيْتَ، وَلاَ مُعْطِيَ لمَا مَنَعْتَ، وَلاَ يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ منْكَ الْجَدُّ»(3).

۞ بيله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، هغه يو دی، شريک

---

(١) مسلم ١/٤١٤.

(٢) مخکيني تخريج دي و کتل شي.(ژباړن)

(٣) بخاري ١/٢٥٥، مسلم ١/٤١٤.

نلري، هغه لره (دکائناتو) ټولواکي او پوره غوره ستاينه ده، او هغه پر هــر څه قادر دی، الهي! ته چي (چا له) څه ورکړې، د هغه (څوک) بــندونکی نشــته، او ته چي (له چا نه) څه بند کړې، د هغه (څوک) ورکونکــی نشته، او فائده نه کوي مالدار لره دهغه مال، ستا د عذاب (په لري کولو کي).

٦٨-٣- «لاَ إِلَــهَ إلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إلاَّ باللَّه، لاَ إِلَهَ إلاَّ اللَّهُ، وَلاَ نَعْبُدُ إلاَّ إِيَّاهُ، لَهُ النِّعْمَةُ، وَلَهُ الْفَضْلُ، وَلَهُ الثَّنَاءُ الْحَسَــنُ، لاَ إِلَــهَ إلاَّ اللَّــهُ مُخْلِصِــينَ لَــهُ الدِّينَ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ»(١).

۞ بيله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، هغه يو دی، شريک نلري، ده لره (دکائناتو) ټولواکي او پوره غوره ستاينه ده، او هغه پر هر څه قادر دی، هيڅ طاقت او قدرت نشته (د ګناه نه د ساتلو* او د نيکيو د کولو) مګر په الله ﷻ سره، بيله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، او بيله هغه نه د بل چا عبادت نه کوو، نعمت او احسان دده له جانبه دی، ټولــه غوره ستاينه هغه لره ده، بيله الله نه بل د عبادت وړ* معبود*

(١) مسلم ١/٤١٥.

نشته، پداسي حال کي چي عبادت او بنده ګي مو خاص هغه لره ده، که څه هم کفارو ته خوښه نه وي.

٦٩-۴- «سُبْحَانَ اللهِ، والحَمْدُ للهِ، واللهُ أَكْبَرُ» [ثلاثاً وثلاثين][1].

۞ پاک دى الله، او ټولــه غوره ستاينه الله لره ده، او الله ډير لوى (ذات) دى. [٣٣ خله].

«لاَ إِلَــهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ»[2].

۞ بيله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، هغه يو دى شريک نلري، هغه لره (د کائناتو) ټولواکي، او پوره غوره ستاينه ده، او همدى پر هر څه قادر دى.

٧٠-٥- بسْــمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ ﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ ۞ اللَّــهُ الصَّــمَدُ ۞ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ ۞ وَلَمْ يَكُن لَّهُ كُفُواً أَحَدٌ﴾ [الإخلاص:١-٥] [بعد كل صلاة][3].

۞ ووايه (اې محمده!): دا چي الله ايکي يو دى، الله بي نيازه دى،

---

(١) مســلم ٤١٨/١، خــوک چي دا د هر لمانځه نه وروسته ووايي، ګناهونه به يې وبخښل شي، که څه هم د سمندر د ځګ په اندازه (زياتي) وي.

(٢) مخکيني تخريج دي و کتل شي.(ژباړن)

(٣) ابــو داود ٨٦/٢، نسائي ٦٨/٣، صحيح الترمذي ٨/٢، او دا دري واړه سورتونه ته «مُعَوِذات» وايي، فتح الباري ٦٢/٩.

نه يې څوک زيږولي، او نه له چا نه زيږيدلی، او هيڅوک هغه لره سيال نشته. [له هر لمانځه نه وروسته]

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ * مِن شَرِّ مَــا خَلَقَ * وَمِن شَرِّ غَاسِقٍ إِذَا وَقَبَ * وَمِن شَرِّ النَّفَّاثَاتِ فِي الْعُقَدِ * وَمِن شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ﴾ [الفلق: ١-٥] [بعد كل صلاة][(١)].

❁ ووايه (اې محمده!): پناه غواړم په پروردګار سره د سهار*، د هغه څه له شر نه چې ده پيدا کړيدي، او د تياره شپې له شر نه چې کله تکه توره شي، او د پوکي کونکيو (جادو ګرو*) ښځو له شر نه (چې پوکل کوي) په غوټو کې، او د حسد کونکي له شر نه چې کله حسد وکړي. [له هر لمانځه نه وروسته]

بِسْــــمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ * مَلِكِ النَّــاسِ * إِلَـــهِ النَّاسِ * مِن شَرِّ الْوَسْوَاسِ الْخَنَّاسِ * الَّذِي يُوَسْــوِسُ فِي صُدُورِ النَّاسِ * مِنَ الْجِنَّةِ وَ النَّاسِ﴾ [النــاس: ١-٦] [بعد كل صلاة][(٢)].

❁ ووايه (اې محمده!): پناه غواړم د خلکو* په پروردګار سره، د خلکو په ټولواک سره، د خلکو* په خدای سره، د وسوسه اچونکي،

---

(١) مخکيني تخريج دي وکتل شي. (ژباړن)

(٢) مخکيني تخريج دي وکتل شي. (ژباړن)

(او د الله د ذكـــر نه) تنبتيدونكي (شيطان) له شر څخه، كوم چي د خلكـــو* پـــه سينو كي وسوسې اچوي، له پيريانو څخه وي، او كه له انسانانو څخه. [له هر لمانځه نه وروسته]

٧١-٦- ﴿اللَّـــهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ لاَ تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَلاَ نَوْمٌ لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الأَرْضِ مَن ذَا الَّذِي يَشْفَعُ عِـــنْدَهُ إِلاَّ بِإِذْنِـــهِ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلاَ يُحِيطُونَ بِشَـــيْءٍ مِّنْ عِلْمِهِ إِلاَّ بِمَا شَاء وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضَ وَلاَ يَـــؤُودُهُ حِفْظُهُمَـــا وَهُـــوَ الْعَلِـــيُّ الْعَظِـــيمُ﴾ [الـــبقرة: ٢٥٥] [عقب كل صلاة][(١)].

۞ الله (هغـــه معبود برحق دی چي) بيله هغه نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، هغه هميشه ژوندی دی، (د كائناتو) تدبيرونكی دی، نه پر هغه پركالي* راځي او نه خوب، څه چي په آسمانونو او ځمكه كي دي ټول هغه لره دي، نشته څوک چي دده په وړاندي بي دده له اجازې نه (د چـــا لـــپاره) شفاعت* وكړي، عالم دی په هغه څه چي له هغوی نه

---

(١) څـــوک چي دا د هر لمانځه نه وروسته ووايي، نو بيله مرګ نه به يې بل شی و جنت ته د داخليدلو نه منع نه كړي.
نســـائي (عمـــل الـــيوم واللـــيلة ١٠٠ نمبر حديث)، ابن السني ١٢١ نمبر حديث، او الباني په صـــحيح الجـــامع ٣٣٩/٥، او په سلسلة الأحاديث الصحيحة ٦٩٧/٢، ٩٧٢ نمبر حديث كي هغه صحيح بللی دی.

وړانـــدي دي[١]، او پـــه هغه څه چي له هغوی نه وروسته دي[٢]، او (هغوی) دده له علم نه په هيڅ شي احاطه* نشي کولای، مګر کوم شی چي الله وغواړي، کرسي يې پر آسمانونو او ځمکه احاطه کړي دي، او د (آسمانونو او ځمکي) ساتل هغه نه ستړی کوي، او هغه لوړ* او لوی دی. [له هر لمانځه نه وروسته]

٧٢-٧- «لاَ إِلَـــهَ إلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، يُحْيِي ويُمِيتُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ» [عشر مرات بعد صلاة المغرب والصبح][٣].

۞ بيله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، هغه يو دی، شريک نلـــري، هغه لره (د کائناتو) ټولواکي*، او پوره غوره ستاينه ده، ژوند ورکوي، او مرګ راولي، او هغه پر هر څه قادر دی. [د ماښام او سهار لمانځه نه وروسته لس ځلي*]

٧٣-٨- «اللَّهُـــمَّ إِنِّـــي أَسْأَلُكَ عِلْماً نَافِعاً، وَرِزْقاً طَيِّباً، وَعَمَلاً مُتَقَبَّلاً» [بعد السلام من صلاة الفجر][٤].

---

(١) يعـــني د هغـــوی پـــه راتلونکـــو حـــالاتو عالم دی، او د (يعلم ما بين أيديهم) نور تفسيرونه هم شته.(ژباړن)

(٢) يعني د هغوی په تيرو شويو حالاتو عالم دی، او د (وما خلفهم) نور تفسيرونه هم شته.(ژباړن)

(٣) ترمذي ٥/٥١٥، احمد ٢٢٧/٤، تخريج يې په زاد المعاد ٣٠٠/١ کي وګوری.

(٤) ابن ماجه او نورو روايت کړيدی، صحيح ابن ماجه ١٥٢/١، مجمع الزوائد ١١١/١٠.

۞ الهـــي! زه له تا نه د ګټور علم، او پاک رزق، او قبول شوي عمل سوال کوم. [د سهار د لمانځه د سلام نه وروسته]

## ٣٦- د استخارې د لمانځه دعا

٧٤- «قـــال جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ رَسُـــولُ اللَّهِ ﷺ يُعَلِّمُنَا الاسْتِخَارَةَ فِي الأُمُورِ كُلِّهَا، كَمَا يُعَلِّمُنَا السُّـــورَةَ مِـــنْ الْقُرْآنِ، يَقُولُ: «إِذَا هَمَّ أَحَدُكُمْ بِالأَمْرِ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ مِنْ غَيْرِ الْفَرِيضَةِ، ثُمَّ لِيَقُلْ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْتَخِيرُكَ بِعِلْمِكَ، وَأَسْـــتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ، وَأَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيمِ، فَإِنَّكَ تَقْدِرُ وَلاَ أَقْدِرُ، وَتَعْلَمُ وَلاَ أَعْلَمُ، وَأَنْتَ عَلاَّمُ الْغُيُوبِ، اللَّهُمَّ إِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هَذَا الأَمْرَ -وَيُسَمِّي حَاجَتَهُ- خَيْرٌ لِي فِي دِينِي وَمَعَاشِي وَعَاقِبَةِ أَمْرِي -أَوْ قَالَ: عَاجِلِهِ وَآجِلِهِ- فَاقْدُرْهُ لِي وَيَسِّرْهُ لِي ثُمَّ بَـــارِكْ لِـــي فِيهِ، وَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هَذَا الأَمْرَ شَرٌّ لِي فِي دِينِي وَمَعَاشِـــي وَعَاقِبَةِ أَمْرِي -أَوْ قَالَ: عَاجِلِهِ وَآجِلِهِ- فَاصْرِفْهُ عَنِّي وَاصْرِفْنِي عَنْهُ وَاقْدُرْ لِي الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ ثُمَّ أَرْضِنِي بِهِ»[(١)].

۞ جابر بن عبد الله رضي الله عنهما وايي: پيغمبر ﷺ به موږ ته په هر کار کي د استخارې داسي ښوونه کوله، لکه څنګه چي به يې موږ ته

---

(١) بخاري ١٦٢/٧.

د قرآن د یو سورت ښوونه کوله، (او داسي به یې) فرمایل: کله چي له تاســـو نه یو څوک د کوم کار کولو اراده وکړي، نو دوه رکعته غیر فرضي (نفل) لمونځ دي وکړي، او بیا دي ووایي: الهي! زه ستا په علم سره له تا نه خیر غواړم، او ستا په قدرت سره له تانه طاقت غواړم، او ســـتا د لوی فضل او رحمت سوال درنه کوم، ځکه ته قادر یې، او زه عاجز یم، او ته پوهیږې او زه نه پوهیږم، او ته په غیبو ښه پوه یې، الهي! که ته پوهیږې چي دا کار -د هغه کار نوم به اخلي- زما لپاره په دین او دنیا کي، او په انجام* د کار کي خیر وي -او یا دي ووایي: په نژدې او لیري آینده* کي را ته خیر وي- نو ته یې ما لره* په برخه کړې، او ما لره یـــې آســـانه کړې، او بیا ما لره په هغه کي برکت واچوې، او که ته پوهیږې چي دا کار زما لپاره په دین او دنیا کي، او په انجام* د کار کي بد دی، -او یا دي ووایي: په نژدې او لیري آینده کي بد دی- نو له ما نه یـــې وګرځوې* او ما له هغه نه وساتې، او ما ته خیر را په برخه کړې چیرته چي وي، او بیا ما په هغه سره خوشحاله کړې.

څـــوک چي د خالق نه خیر وغواړي، او د مؤمنانو سره مشوره وکړي، او په کار کي ښه فکر وکړي، نو هیڅکله به پښیمانه* نشي، الله جَلَّ جَلَالُهُ فـــرمایي: ﴿وَشَاوِرْهُمْ فِي الأَمْرِ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللّه﴾ [آل عمران: ۱۵۹]

۞ او لدوی (مومنانو) سره په کار کې مشوره وکړه، او چې کله (د کار کولو) عزم او اراده وکړې، نو پر الله توکل او تکیه وکړه.

## ۲۷- د سهار او ماښام اذکار

الحَمْـــدُ للهِ وَحْـــدَهُ، والصَّـــلاةُ والسَّلامُ عَلى مَنْ لا نَبِيَّ بَعْدَهُ[١].

۞ يواځـــې الله لره ټولـــه غوره ستاينه ده، او درود او سلام دې وي پر هغه چا چې له هغه نه وروسته پیغمبر نشته.

٧٥-١- أَعُـــوذُ بالله منَ الشَيْطَان الرَّجِيم ﴿اللَّهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ لاَ تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَلاَ نَوْمٌ لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الأَرْضِ مَن ذَا الَّذِي يَشْفَعُ عِنْدَهُ إِلاَّ بِإِذْنِه يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَـــا خَلْفَهُـــمْ وَلاَ يُحِيطُونَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِه إِلاَّ بِمَا شَاء وَسِعَ كُرْسِـــيُّهُ السَّـــمَاوَاتِ وَالأَرْضَ وَلاَ يَؤُودُهُ حِفْظُهُمَا وَهُوَ الْعَلِيُّ

(١) لـــه انـــس نه مرفوع روايت دی: «لأن أقعد مع قوم يذكرون الله تعالى من صلاة الغداة حتى تطلع الشـــمس أحـــبُّ إليَّ من أن أُعتق أربعة من ولد إسماعيل، ولأن أقعد مع قوم يذكرون الله من صلاة العصـــر إلى أن تغرب الشمس أحبّ إليَّ من أن أُعتق أربعة»، ترجمه: چې زه له يو داسې ډلې سره کښېنم* چـــې د سهار* له لمانځه نه تر لمر ختو پورې د الله ذکر کوي، دا ما ته لدې نه غوره ده چـــې د اسماعيل عليه السلام له اولاد نه څلور مريان آزاد کړم، او چې زه له داسې يو ډلې سره کښېنم چـــې د ماښامګـــر له لمانځـــه نه تر لمر لويدو پورې د الله ذکر کوي، دا ماته لدې نه غوره ده چې څلور (مريان) آزاد کړم.

ابو داود ٣٦٦٧ نمبر حديث، او الباني هغه حَسَن بللی دی، صحيح أبي داود ٢/٦٩٨.

الْعَظِيمُ﴾ [البقرة: ٢٥٥][1].

۞ مخکي يې ترجمه شويده. [٧٠ نمبر ذکر دي وکتل شي]

٧٦-٢- بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ ﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ ۞ اللَّهُ الصَّمَدُ ۞ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ ۞ وَلَمْ يَكُن لَّهُ كُفُواً أَحَدٌ﴾ [الإخلاص: ١-٥] [ثلاث مرات][2].

۞ مخکي يې ترجمه شويده. [دري خلي] [٧٠ نمبر ذکر دي وکتل شي]

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ ۞ مِن شَرِّ مَا خَلَقَ ۞ وَمِن شَرِّ غَاسِقٍ إِذَا وَقَبَ ۞ وَمِن شَرِّ النَّفَّاثَاتِ فِي الْعُقَدِ ۞ وَمِن شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ﴾ [الفلق: ١-٥] [ثلاث مرات][3].

۞ مخکي يې ترجمه شويده. [دري خلي] [٧٠ نمبر ذکر دي وکتل شي]

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ ۞ مَلِكِ النَّاسِ ۞ إِلَهِ النَّاسِ ۞ مِن شَرِّ الْوَسْوَاسِ الْخَنَّاسِ ۞ الَّذِي

---

(١) [illegible]ک چي دا (آيتونه) د سهار* په وخت ووايي، نو له پيريانو نه به تر ماښام پورې په امان وي، او ـرک چي دا (آيتونه) د ماښام په وخت ووايي، نو له هغوی نه به تر سهاره پورې په امان وي.
حاکم ١/٥٦٢، او الباني هغه په صحيح الترغيب والترهيب ١/٢٧٣ کې صحيح بللی، او نسائي او طبراني ته يې منسوب کړيدی، او ويلي دي: د طبراني اسناد ښه (جيد) دی.

(٢) څوک چي دا سورتونه د سهار او ماښام په وخت ووايي، نو له هر څه نه ورته کافي او بس دي.
ابو داود ٤/٣٢٢، ترمذي ٥/٥٦٧، صحيح الترمذي ٣/١٨٢

(٣) مخکيني تخريج وکتل شي.(ژباړن)

يُوَسْـــوِسُ فِي صُدُورِ النَّاسِ * مِنَ الْجِنَّةِ وَ النَّاسِ﴾ [الناس: ١-٦]
[ثلاث مرات][1].

۞ مخكې يې ترجمه شويده. [دري خلي] [٧٠ غير ذكر دي وكتل شي]

٧٧-٣- «أَصْـــبَحْنَا وأَصْبَحَ الْمُلْكُ للَّه، وَالْحَمْدُ للَّه، لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، رَبِّ أَسْأَلُكَ خَيْرَ مَا فِي هَذ الْيَومِ وَخَيْرَ مَا بَعْدَه، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا فِي هَذ الْيَومِ وَشَرِّ مَا بَعْدَه، رَبِّ أَعُوذُ بِكَ مِـــنْ الْكَسَـــلِ وَسُوءِ الْكِبَرِ رَبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابٍ فِي النَّارِ وَعَذَابٍ فِي الْقَبْرِ»[2].

۞ سهار* شو[3] پر موږ[4]، او تولواكي* توله خاص الله لره ده[5]، او تولـــه غوره ستاينه الله لره ده، بيله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشـــته، هغه يو دى، شريک نلري، او هغه پر هر څه قادر دى، اى زما

---

(١) مخكينى تخريج و كتل شي.(ژباړن)

(٢) مسلم ٢٠٨٨/۴.

(٣) چـــې كله مابنام شي، نو داسې به وايي: «أمسينا وأمسى الملك لله»، ترجمه: مابنام شو پر موږ، او تولواكي* توله الله لره ده.

او بله ترجمه يې داده: او پر كاتناتو هم مابنام شو يوازې الله لره.

(٤) يعني: موږ سهار كړو، يا د سهار په وخت كې داخل شوو.(ژباړن)

(٥) بله ترجمه يې داده: پر كاتناتو سهار شو يوازې الله لره.(ژباړن)

پروردګاره! پدې ورځ کې څه خير دی، او د دې وروسته چې څه خير دی، زه له تا نه د هغه سوال کوم، او پدې ورځ کې چې څه شر دی، او له هغه نه وروسته چې څه شر دی، له هغه څخه په تا سره پناه غواړم، ای زما پروردګاره! په تا سره له تنبلۍ*، او د لوی عمر د بدوالي نه پناه غواړم، ای زما پروردګاره! په تا سره د دوزخ* او قبر له عذاب نه پناه غواړم.

٧٨-٤- «اللَّهُـمَّ بِكَ أَصْبَحْنَا، وَبِكَ أَمْسَيْنَا وَبِكَ نَحْيَا، وَبِكَ نَمُوتُ، وَإِلَيْكَ النُّشُورُ»[1].

۞ الهي! (ستا په حکم) موږ سهار* کړو، او (ستا په حکم سره) موږ ماښام* کړو[2]، او ستا (په حکم سره) ژوند کوو، او ستا (په حکم سره) مرو*، او تا لره بيا درتګ (او ژوندي کيدل) دي.

٧٩-٥- «اللَّهُـمَّ أَنْتَ رَبِّي لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ، خَلَقْتَنِي وَأَنَا عَبْدُكَ، وَأَنَا عَلَى عَهْدِكَ وَوَعْدِكَ مَا اسْتَطَعْتُ، أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ، أَبُوءُ بِنِعْمَتِكَ عَلَيَّ، وَأَبُوءُ لَكَ بِذَنْبِي، فَاغْفِرْ لِي فَإِنَّهُ

---

(١) ترمذي ٤٦٦/٥، صحيح الترمذي ١٤٢/٣.

(٢) او چښې کله ماښام شي، نو داسې به وايي: «اللهم بك أمسينا وبك أصبحنا وبك نحيا وبك نموت، وإليك المصير»، يعني «أمسينا» به له «أصبحنا» نه مخکې وايي، او د «النشور» په ځای به «المصير» وايي، او ترجمه يې هماغه پورتنی ترجمه ده.

لاَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلاَّ أَنْتَ»[(١)].

۞ الهـــي! ته زما پروردګار يې، بيله تا نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، تا زه پيدا کړی يم، او زه دي بنده يم، او زه د خپل توان سره ستا پر عهد او وعده ولاړ يم، زه په تا سره د خپلو کړو* له شر نه پناه غواړم، زه ستا په هغه نعمت اقرار کوم چې ما ته دي راکړی، او په خپله ګناه اقرار کوم، نو ما ته بخښنه وکړې، چې بيله تا نه څوک ګناه نشي بخښلای.

٨٠-٦- «اللَّهُـــمَّ إِنِّي أَصْبَحْتُ، أُشْهِدُكَ وَأُشْهِدُ حَمَلَةَ عَرْشِكَ وَمَلاَئِكَتَكَ وَجَمِيعَ خَلْقِكَ، أَنَّكَ أَنْتَ اللَّهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ وَحْـــدَكَ لاَ شَـــرِيكَ لَـــكَ، وَأَنَّ مُحَمَّـــداً عَبْدُكَ وَرَسُولُكَ» [أربع مرات][(٢)].

۞ الهـــي! ما سهار کړو[(٣)]، پداسي حال کي چي زه تا او ستا د

---

(١) څـــوک چـــي دا دعا په يقين سره د ماښام په وخت ووايي، او بيا په هماغه شپه مړ شي، نو جنت ته به داخل شي، او همدا رنګه که هغه د سهار په وخت ووايي.
بخاري ١٥٠/٧.

(٢) څـــوک چـــي دا ذکر د سهار او يا ماښام په وخت څلور ځلي ووايي، الله به يې له دوزخ* نه په امان کړي.
ابـــو داود ٣١٧/٤، بخاري په «الأدب المفرد» ١٢٠١ نمبر حديث کي، نسائي په «عمل اليوم واللـــيلة» ٩ نمبر حديث کي، ابن السني ٧٠ نمبر حديث کي روايت کړيدی، او علامه ابن باز په «تحفة الأخيار» ص٢٣ کي د نسائي او ابو داود اسناد حَسَن بللی دی.

(٣) چـــي کلـــه ماښـــام کيدونکی وي نو داسي به وايي: «اللهم إني أمسيت»، ترجمه: الهي! ما ماښام کړو.

عــرش پورته کونکي[1]، او ستا فرښتې*، او ستا ټول مخلوقات پدې شاهد* ګڼم چې بې شکه ته الله يې، بيله تا نه بل د عبادت وړ* معبود* نشــته، يو يې، شريک نلرې، ، او په رښتيا سره محمد ستا بنده او ستا پيغمبر دی.[خلور خلي*]

٨١-٧- «اللَّهُــمَّ مَــا أَصْبَحَ بِي مِنْ نِعْمَةٍ أَوْ بِأَحَدٍ مِن خَلْقِــكَ فَمِــنْكَ وَحْــدَكَ لاَ شَرِيكَ لَكَ، فَلَكَ الْحَمْدُ وَلَكَ الشُّكْرُ»[2].

۞ الهــي! کوم نعمت چې ما ته، او يا ستا بل کوم مخلوق ته د سـهار پــه وخت[3] رسيدلی، نو هغه يواځې* ستا له طرفه دی، تا لره شريک نشته، نو تا لره ټولــه غوره ستاينه او شکر دی.

٨٢-٨- «اللَّهُمَّ عَافِنِي فِي بَدَنِي، اللَّهُمَّ عَافِنِي فِي سَمْعِي، اللَّهُمَّ عَافِنِي فِي بَصَرِي، لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ، اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ

---

(١) يعني هغه ملائکې چې عرش يې پورته کړيدی.(ژباړن)

(٢) خــوک چې دا ذکر د سهار په وخت ووايي، نو د هغې ورځې شکر يې په ځای کړيدی، او چې کله هغه د ماښام په وخت ووايي، نو د هغې شپې شکر يې په ځای کړيدی.
ابــو داود ٣١٨/۴، او نســائي په «عمل اليوم والليلة» ٧ نمبر حديث کې، ابن السني ۴١ نمبر حديــث کــې، ابن حبان «موارد» ٢٣٦١ نمبر حديث کې روايت کړيدی، او علامه ابن باز په «تحفة الأخيار» ص٢۴ کې د هغه اسناد حَسَن بللی دی.

(٣) او د ماښــام پــه وخــت به داسې وايي: «اللهم ما أمسى بي..»، يعني: الهي! کوم نعمت چې.. د ماښام په وخت رسيدلی..

الْكُفْـــرِ وَالْفَقْرِ، اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ» [ثلاث مرات] (١).

۞ الهـــي! ما ته په بدن كي روغتيا راكړې، الهي! ما ته په غوږونو كي روغتيا راكړې، الهي! ما ته په ستركو كي روغتيا راكړې، بيله تا نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، الهي! زه په تا سره له كفر او فقر نه پناه غواړم، او په تا سره د قبر له عذاب نه پناه غواړم، بيله تا نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته. [درې خلې*]

٨٣-٩- «حَسْــبِيَ اللَّهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ، عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ» [سبع مرات] (٢).

۞ بس دى ما ته هغه الله چي بيله هغه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، پر هغه مي توكل كړى، او همدى د لوى عرش څښتن* دى. [اووه خلې*]

٨٤-١٠- «اللَّهُـــمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْعَفْوَ وَالْعَافِيَةَ فِي الدُّنْيا

---

(١) ابـــو داود ٣٢٤/٤، احمـــد ٤٢/٥، نســـائي په «عمل اليوم والليلة» ٢٢ نمبر حديث كي، ابن السـني ٦٩ نمبر حديث كي، بخاري په «الأدب المفرد» كي روايت كړيدى، او علامه ابن باز په «تحفة الأخيار» ص٢٦ كي د هغه اسناد حَسَن بللى دى.

(٢) خـــوك چـــي دا ذكر د سهار او مابنام په وخت اووه خلي ووايي، الله به يې د دنيا او آخرت د كارونو او اندينسو* لپاره ورته كافي وګرځوي، ابــن السني ٧١ نمبر حديث كي مرفوع، ابو داود ٣٢١/٤ موقوف روايت كړيدى، او شعيب او عبد القادر الأرناؤوط يې اسناد صحيح بللى دى، زاد المعاد ٣٧٦/٢.

والآخِـــرَةِ، اللَّهُـــمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْعَفْوَ وَالْعَافِيَةَ فِي دِينِي وَدُنْيَايَ وَأَهْلِي وَمَالِي، اللَّهُمَّ اسْتُرْ عَوْرَاتِي وَآمِنْ رَوْعَاتِي، اللَّهُمَّ احْفَظْنِي مِـــنْ بَـــيْنِ يَدَيَّ، وَمِنْ خَلْفِي، وَعَنْ يَمِينِي، وَعَنْ شِمَالِي، وَمِنْ فَوْقِي، وَأَعُوذُ بِكَ أَنْ أُغْتَالَ مِنْ تَحْتِي»[٢].

۞ الهي! زه له تا نه په دنيا او آخرت کي د معافی او سلامتی سوال کوم، الهي! زه له تا نه په خپل دين او دنيا کي او په خپل اهل او مال کي د معافی او سلامتی سوال کوم، الهي! زما عيبونه پټ کړې، او ويره* را نـــه لري کړې، الهي! ما د مخي نه، او د شا نه، او د ښی خوا نه، او د چپي خوا نه، او د پورته خوا نه محفوظ کړې، او زه ستا په لويي سره لدې نه پناه غواړم چي د لاندي خوا نه ناڅاپه* هلاک شم.

٨٥-١١- «اللَّهُمَّ عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ، فَاطِرَ السَّمواتِ وَالأَرْضِ، رَبَّ كُـــلِّ شَـــيْءٍ وَمَلِيكَهُ، أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ، أَعُـــوذُ بِـــكَ مِنْ شَرِّ نَفْسِي، وَمِنْ شَرِّ الشَّيْطَانِ وَشِرْكِهِ، وأَنْ أَقْتَرِفَ عَلَى نَفْسِي سُوءاً، أَوْ أَجُرَّهُ إِلَى مُسْلِمٍ»[٢].

۞ الهي! اې په پټو او ښکاره عالمه! اې د آسمانونو او ځمکي پيدا کونکـــيه! اې د هر شي* پالونکيه او واکمنه! زه شاهدي* ورکوم چي

(١) ابو داود، ابن ماجه، صحيح ابن ماجه ٣٣٢/٢.
(٢) ترمذي، ابو داود، صحيح الترمذي ١٤٢/٣.

بیله تا نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، زه په تا سره د خپل نفس د شر نه، او د شیطان د شر او شرک نه پناه غواړم، او لدې نه پناه غواړم چې زه بدي وکړم، او یا (بل) مسلمان ته بدي ورسوم.

٨٦-١٢- «بِسْمِ اللَّهِ الَّذِي لاَ يَضُرُّ مَعَ اسْمِهِ شَيْءٌ فِي الأَرْضِ وَلاَ فِي السَّمَاءِ، وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ»[ثلاث مرات] (١).

۞ د هغه الله په نوم چې له نامه سره یې هیڅ شي* په ځمکه او آسمان کې ضرر نه رسوي، او هغه ښه اوریدونکی، ښه پوه دی. [درې ځلې]

٨٧-١٣- «رَضِيتُ بِاللَّهِ رَبّاً، وَبِالإِسْلاَمِ دِيناً، وَبِمُحَمَّدٍ نَبِيّاً»[ثلاث مرات] (٢).

۞ زه د الله په خدایي توب (یا کارسازي)، او د اسلام په دین، او

(١) څوک چې دا ذکر د سهار په وخت درې ځلې، او د ماښام په وخت درې ځلې ووایي، هیڅ شی به ورته ضرر ونه رسوي.
ابــو داود ٣٢٣/۴، ترمذي ۴٦٥/٥، ابن ماجه، احمد، صحیح ابن ماجه ٣٣٢/٢، او علامه ابن باز په «تحفة الأخيار» ص٣٩ کې د هغه اسناد حَسَن بللی دی.

(٢) څوک چې دا ذکر د سهار ، او ماښام په وخت درې ځلې ووایي، نو په الله حق دی چې هغه به د قیامت په ورځ خوشحالوي.
احمد ٣٣٧/۴، نسائي په «عمل اليوم والليلة» ۴ نمبر حدیث کې، ابن السني ٦٨ نمبر حدیث کې، ابو داود ٣١٨/۴، ترمذي ۴٦٥/٥ روایت کړیدی، او علامه ابن باز په «تحفة الأخيار» ص٣٩ کې د هغه اسناد حَسَن بللی دی.

د محمد په پیغمبري راضي شوم. [درې ځلې]

**٨٨–١٤– «يَا حَيّ يَا قَيُّوم، بِرَحْمَتِك أَسْتَغِيث، أَصْلِحْ لِي شَأْنِي كُلّه، وَلاَ تَكِلْنِي إِلَى نَفْسِي طَرْفَة عَيْن»[١].**

۞ ای د کامل ژوند څښتنه! ای د کائناتو تدبیرونکیه!*، ستا په رحمت سره فریاد کوم او مدد غوارم، زما ټول کارونه برابر* کړې، او زما نفس (او خواهشاتو) ته مې د سترګې د رَپ* په اندازه هم مه سپارې.

**٨٩–١٥– «أَصْبَحْنَا وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلَّه رَبِّ الْعَالَمِينَ، اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَ هَذَا الْيَوْمِ: فَتْحَهُ، وَنَصْرَهُ، وَنُورَهُ، وَبَرَكَتَهُ، وَهُدَاهُ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا فِيهِ وَشَرِّ مَا بَعْدَهُ»[٢].**

۞ مونږ سهار کړو[٣]، او کائناتو هم الله لره سهار کړو، چې پروردګار د مخلوقاتو دی، الهي! زه درنه د دې ورځې[٤] د خیر،

---

(١) حاكم روايت کړی، او هغه يې صحيح بللی، او ذهبي ورسره موافقه کړېده، صحيح الترغيب والترهيب ب١/٢٧٣.

(٢) ابو داود ٣٢٢/۴، او شعيب او عبد القادر الأرناؤوط د «زاد المعاد» ٢٧٣/٢ په تحقيق کې د هغه اسناد حَسَن بللی دی.

(٣) د ماښام په وخت به داسې وايې: «أمسينا وأمسى الملك لله رب العالمين»، ترجمه: ماښام شو پر مونږ، او ټولواکي* ټوله خاص الله لره ده.

(٤) د ماښام په وخت به داسې وايې: «اللهم إني أسألك خير هذه الليلة فتحها، ونصرها، ونورها، وبركتها، وهداها، وأعوذ بك من شر ما فيها وشر ما بعدها»، ترجمه هماغه پورتنی ترجمه ده، =

کامیابی، نصرت، رڼایي، برکت، او هدایت سوال کوم، او په تا سره د هغې له شر نه، او د هغې نه وروسته شر نه پناه غواړم.

٩٠-١٦- «أَصْـبَحْنَا عَلَى فِطْرَةِ الإِسْلاَمِ، وَعَلَى كَلِمَةِ الإِخْلاَصِ، وَعَلَى دِينِ نَبِيِّنَا مُحَمَّدٍ ﷺ، وَعَلَى مِلَّةِ أَبِينَا إِبْرَاهِيمَ حَنِيفاً مُسْلِماً، وَمَا كَانَ مِنْ الْمُشْرِكِينَ»[1].

۞ مونږ په فطرت* د اسلام، او په کلمه د اخلاص، او په دین د محمـــد ﷺ، او په طریقه زمونږ د پلار ابراهیم عليه السلام سهار کړو[2]، چې حق ته مایل* وو، او له مشرکانو څخه نه وو.

٩١-١٧- سُبْحَانَ اللهِ وبِحَمْدِه [مائة مرة][3].

۞ پاک دی الله سره له ټولي ستاینې. [سل ځلې]

٩٢-١٨- «لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ

=

خو د ورځې په ځای به شپه یادوي.

(١) احمـــد ٣/٤٠٧، ٤٠٦، ابـــن الســـني په «عمل اليوم والليلة» ٣٤ نمبر حديث کې، صحيح الجامع ٤/٢٠٩.

(٢) او د ماښام په وخت به وایې: مونږ په فطرت د اسلام... ماښام کړو.

(٣) څـــوک چې دا ذکر د سهار او ماښام په وخت سل ځلې ووايي، هيڅ څوک به د قيامت په ورځ لـــده غـــوره* عمل ونلري، مګر هغه څوک چې دده په اندازه او يا له هغه نه زيات يې دا ذکر ويلی وي.

مسلم ٤/٢٠٧١.

وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ» [عشر مرات][1] أو [مرة واحدة عند الكسل][2].

۞ بیله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، هغه یو دی، شریک نلري، هغه لره ټولواکي ده، او هغه لره ټولـــه غوره ستاینه ده، او هغه پر هر څه قادر دی. [لس ځلې] یا [یو ځل د تنبلی* په وخت کې]

۹۳-۱۹- «لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ» [مائة مرة إذا أصبح][3].

۞ بیله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، هغه یو دی، شریک نلري، ده لره ټولواکي ده، او هغه لره پوره غوره ستاینه ده، او هغه پر هر څه قادر دی. [د سهار په وخت سل ځلې]

۹٤-۲۰- «سُـــبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ، عَدَدَ خَلْقِهِ، وَرِضَا

---

(۱) نســـائي په «عمل اليوم والليلة» ۲۴ نمبر حديث کې روايت کړيدی، صحيح الترغيب والترهيب ۲۷۲/۱، «تحفـــة الأخـــيار» ص۴۴ د ابن باز ليکنه، او ددې ذکر فضيلت په ص۱۴٦، ۲۵۵ نمبر حديث کې وکتل شي.

(۲) ابـــو داود ۳۱۹/۴، ابن ماجه، احمد ٦۰/۴، صحيح الترغيب والترهيب ۲۷۰/۱، صحيح ابي داود ۹۵۷/۳، صحيح ابن ماجه ۳۳۱/۲، زاد المعاد ۳۷۷/۲.

(۳) څـــوک چې دا ذکر په ورځ کې سل ځلې ووايي، نو د لســو مريانو د آزادولو په اندازه (اجر) به ورکـــړل شي، او هغه لره به سل نيکۍ وليکل شي، او سل ګناهونه به ورته وبخښـل* شي، او په هماغـــه ورځ بــــه تر ماښام پورې له شيطان نه په امان وي، او هيڅ څوک به لده نه غوره عمل ونلري، مګر هغه څوک چې دده په شان يې عمل کړی وي.
بخاري ۹۵/۴، مسلم ۲۰۷۱/۴.

نَفْسِهِ، وَزِنَةَ عَرْشِهِ، وَمِدَادَ كَلِمَاتِهِ» [ثلاث مرات إذا أصبح] [1].

۞ پـاک دی الله، او هغـه لـره تولـه غوره ستاينه ده دده د مخلوقاتو د شمیر په اندازه، او دده د رضا (په اندازه)، او دده د عرش د وزن (په اندازه)، او دده د کلماتو د سیاهي (په اندازه). [درې خلي د سهار په وخت]

٩٥-٢١- «اللَّهُـمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ عِلْماً نَافِعاً، وَرِزْقاً طَيِّباً، وَعَمَلاً مُتَقَبَّلاً» [إذا أصبح] [2].

۞ الهي! زه له تا نه د ګټور علم، او پاکې روزۍ*، او قبول شوي عمل سوال کوم. [چې کله سهار پاځې]

٩٦-٢٢- «أَسْتَغْفِرُ اللهَ وأَتُوبُ إِليهِ» [مائة مرة في اليوم] [3].

۞ له الله نه بخښنه* غواړم، او هغه ته توبه اوباسم. [سل خله د ورځې]

٩٧-٢٣- «أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ» [ثلاث مرات إذا أمسى] [4].

---

(١) مسلم ٢٠٩٠/٤.

(٢) ابـن السـني پـه «عمل اليوم والليلة» ٥٤ نمبر حديث کې، ابن ماجه ٩٢٥ نمبر حديث کې روايـت کړيدی، او شعيب او عبد القادر الأرنؤوط د «زاد المعاد» په تحقيق ٣٧٥/٢ کې د هغه اسناد حَسَن بللی دی.

(٣) بخاري (فتح الباري ١٠١/١١)، مسلم ٢٠٧٥/٤.

(٤) خـوک چې هغه د ماښام په وخت درې خلي ووايي، په هغه شپه کې به (د زهرناکي خزندې*) =

۞ د الله په بشپړ* کلام سره د هغه د مخلوقاتو له شر نه پناه غواړم. [درې خلې د ماښام په وخت]

۹۸-۲۴- «اللَّهُمَّ صَلِّ وَسَلِّمْ عَلَى نَبِيِّنَا مُحَمَّدٍ» [عشر مرات](۱).

۞ الهي! زمونږ پر پیغمبر محمد درود او سلام ولیږه. [لس خلې]

## ۲۸- د خوب اذکار

۹۹-۱- خپل ورغوي* به سره يو ځای کړي، او بيا دي لاندينې اذکار ولولي، او هغه دي په لاسونو کې چُف کړي، او بيا دي په ورغويو سره خپل جسم مسه* کړي، له سره دي يې شروع کړي، او بيا مخ او بيا نور جسم (دې مسه کړي). [دا به درې خلې کوي]

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ ﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ ۞ اللَّهُ الصَّمَدُ ۞ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ ۞ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُواً أَحَدٌ﴾ [الإخلاص: ١-٥](٢).

---

زهر ورته څه ضرر ونه رسوي.
احمد ۲/۲۹۰، نسائي په «عمل اليوم والليلة» ۵۹۰ نمبر حديث کې، ابن السني ٦٨ نمبر حديث کې روايت کړيدی، صحيح الترمذي ۳/۱۸۷، صحيح ابن ماجه ۲/۲٦٦، تحفة الأخيار ص۴۵.

(۱) (پيغمبر ﷺ فرمايي) څوک چې د سهار په وخت، او ماښام په وخت لس لس خلې پر ما درود ووايي، نو د قيامت په ورځ به يې زما شفاعت په برخه شي.
طبراني په دوو اسنادو سره روايت کړيدی، چې يو اسناد يې ښه (جيد) دی، مجمع الزوائد ۱۰/۱۲۰، صحيح الترغيب والترهيب ۱/۲۷۳ دې وکتل شي.

(۲) بخاري (فتح الباري ۹/٦۲)، مسلم ۴/۱۷۲۳.

۞ ترجمه يې مخکې شويده.[٧٠ نمبر ذکر دې وکتل شي]

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ * مِن شَرِّ مَا خَلَقَ * وَمِن شَرِّ غَاسِقٍ إِذَا وَقَبَ * وَمِن شَرِّ النَّفَّاثَاتِ فِي الْعُقَدِ * وَمِن شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ﴾ [الفلق: ١-٥][1].

۞ ترجمه يې مخکې شويده.[٧٠ نمبر ذکر دې وکتل شي]

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ * مَلِكِ النَّاسِ * إِلَهِ النَّاسِ * مِن شَرِّ الْوَسْوَاسِ الْخَنَّاسِ * الَّذِي يُوَسْوِسُ فِي صُدُورِ النَّاسِ * مِنَ الْجِنَّةِ وَ النَّاسِ﴾ [الناس: ١-٦][2].

۞ ترجمه يې مخکې شويده.[٧٠ نمبر ذکر دې وکتل شي]

١٠٠-٢- ﴿اللَّهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ لاَ تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَلاَ نَوْمٌ لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الأَرْضِ مَن ذَا الَّذِي يَشْفَعُ عِنْدَهُ إِلاَّ بِإِذْنِهِ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلاَ يُحِيطُونَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهِ إِلاَّ بِمَا شَاء وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضَ وَلاَ يَؤُودُهُ حِفْظُهُمَا وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ﴾ [البقرة: ٢٥٥][3].

---

(١) مخکینی تخریج دې وکتل شي.(ژباړن)

(٢) مخکینی تخریج دې وکتل شي.(ژباړن)

(٣) څـوک چـې کلـه خپل د خوب ځای ته راشي او آیت الکرسي ووایي، نو د الله له طرفه به یو ساتونکی ورته مقرر شي، او شیطان به ورته نه نژدې کیږي تر څو چې سهار شي. بخاري (فتح الباري ٣/٤٧٨).

۞ ترجمه يې مخکې شويده.[٧٠ نمبر ذکر دې وکتل شي]

١٠١-٣- ﴿آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مِن رَّبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ كُلٌّ آمَنَ بِاللَّهِ وَمَلآئِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ لاَ نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّن رُّسُلِهِ وَقَالُواْ سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ * لاَ يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْساً إِلاَّ وُسْعَهَا لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ رَبَّنَا لاَ تُؤَاخِذْنَا إِن نَّسِينَا أَوْ أَخْطَأْنَا رَبَّنَا وَلاَ تَحْمِلْ عَلَيْنَا إِصْراً كَمَا حَمَلْتَهُ عَلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِنَا رَبَّنَا وَلاَ تُحَمِّلْنَا مَا لاَ طَاقَةَ لَنَا بِهِ وَاعْفُ عَنَّا وَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَآ أَنتَ مَوْلاَنَا فَانصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ﴾ [البقرة: ٢٨٥-٢٨٦][1].

۞ پيغمبر ﷺ په هغه څه چې ده ته له خپل پروردګار څخه را نازل شوي دي يقين او باور کړی، او مومنانو هم (په هغه يقين کړی)، او ټولو ايمان راوړ په الله، او د هغه په ملائکو، او د هغه په کتابونو، او د هغه په پيغمبرانو، (پداسې حال کې چې ټول وايي): د (الله) د پيغمبرانو د هيڅ يو په مينځ کې فرق* نه کوو، او (همدارنګه پيغمبر او مومنان) وايي: مونږ (د الله حکم) واوريده، او (د هغه) اطاعت* مو وکړ، ای پروردګاره! ستا بخښنه غواړو، او تا ته (د

(١) چا چې دا دوه آيته د شپې ولوستل، نو هغه ورته کافي ده.
بخاري (فتح الباري ٩/٩٤)، مسلم ١/٥٥٤.

ټولو مخلوقاتو) بیا در تګ دی.

الله هیڅ څوک د قدرت او طاقت نه زیات نه مکلف کوي، کوم (نیک) کار چي یې کړی د هغه (ثواب) همده لره دی، او کوم (بد) کار چي یې کړی د هغه (عذاب) پر همده باندي دی، ای زمونږ پروردګاره! مونږ (په ګناه) مه نیسه کله چي (ستا حکم) هیر کړو، او یا په خطا سره (ګناه وکړو)، ای پروردګاره! او مه ایږده پر مونږ باندي درونه بار، لکه څنګه چي دي زمونږ نه مخکي کسانو باندي ایښی وو، ای پروردګاره! او مه ایږده پر مونږ باندي هغه بار چي مونږ یې هیڅ طاقت نلرو، او زمونږ د(ګناهونه) نه تیر شه، او مونږ ته بخښنه وکړه، او پر مونږ رحم وکړه، ته زمونږ مددګار یې، نو ته مونږ پر کافر قوم بریالي* کړې.

١٠٢-٤- [1]«باسْمِكَ رَبِّي وَضَعْتُ جَنْبِي وَبِكَ أَرْفَعُهُ، إِنْ أَمْسَكْتَ نَفْسِي فَارْحَمْهَا، وَإِنْ أَرْسَلْتَهَا فَاحْفَظْهَا بِمَا تَحْفَظُ بِهِ عِبَادَكَ الصَّالِحِينَ»[2].

---

(١) (پیغمبر ﷺ فرمایي) کله چي له تاسو نه یو له خپل بستر نه پاڅیږي* او بیا ورته بیرته راشي، نو د څادر په پلو دي هغه دري ځلي راټک وهي، او بیا دي بسم الله پړي ووایي، ځکه هغه نه پوهیږي چي د هغه ځای ته له هغه نه وروسته څه راغلي دي، او چي کله څملي* نو بیا دي ووایي:.. باقي حدیث.

(٢) بخاري ١١/١٢٦، مسلم ٤/٢٠٨٤.

۞ الهي! ستا په نوم سره مې خپله ډډه ولګوله، او ستا (په نوم سره يې) بېرته را پورته کوم، که دې زما روح قبض کړ، نو رحم پر* وکړه، او که دې بېرته را وليږه[1]، نو ساتنه يې وکړه، په هغه څه سره چې د خپلو نيکو بندګانو (ساتنه* کوې).

١٠٣-٥- «اللَّهُمَّ إِنَّكَ خَلَقْتَ نَفْسِي وَأَنْتَ تَوَفَّاهَا، لَكَ مَمَاتُهَا وَمَحْيَاهَا، إِنْ أَحْيَيْتَهَا فَاحْفَظْهَا، وَإِنْ أَمَتَّهَا فَاغْفِرْ لَهَا، اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْعَافِيَةَ»[2].

۞ الهي! په رښتيا سره تا زما روح پيدا کړی، او ته يې مړ کوې، او تا لره يې مرګ او ژوند دی، که دې ژوند ورکړ نو حفاظت يې وکړې، او که دې مړ کړ، نو بخښنه ورته وکړې، الهي! زه درنه د روغتيا سوال کوم.

١٠٤-٦-[3] «اللَّهُمَّ قِنِي عَذَابَكَ يَوْمَ تَبْعَثُ عِبَادَكَ» [ثلاث مرات][4].

۞ الهي! ستا له عذاب نه مې وساتې په کومه ورځ چې خپل

---

(١) يعني: زما روح دې قبض نه کړ، او دوباره دې راويښ کړم.(ژباړن)

(٢) مسلم ٢٠٧٣/٤، احمد په خپل لفظ سره ٧٩/٢.

(٣) پيغمبر ﷺ کله چې به ووده کيده، خپل ښى لاس به يې تر باړخو* لاندې ايښوده، او بيا به يې داسې ويل:... باقي حديث.

(٤) ابو داود بلفظه ٣١١/٤، صحيح الترمذي ١٤٣/٣.

بندګان بیا ژوندي کوي. [دريم خلی]

**١٠٥-٧- «باسْمِكَ اللّهُمَّ أَمُوتُ وأَحْيَا»[١].**

❁ الهي! ستا په نوم سره مرم، او ژوندی کیږم.

**١٠٦-٨- «سُبْحَانَ اللّٰه» [ثلاثًا وثلاثين][٢].**

❁ پاک دی الله جل جلاله. [دريم ديرش خله]

**«الْحَمْدُ لله» [ثلاثًا وثلاثين][٣].**

❁ ټولـــه غوره ستاینه الله لره ده. [دريم ديرش خله]

**«اللّهُ أَكْبَرُ»[ثلاثًا وثلاثين][٤].**

❁ الله ډير لوی دی. [دريم ديرش خله]

**١٠٧-٩- «اللّهُـــمَّ رَبَّ السَّموات السَّبْعِ وَرَبَّ الْعَرْشِ الْعَظِـــيمِ، رَبَّـــنَا وَرَبَّ كُلِّ شَيْءٍ، فَالِقَ الْحَبِّ وَالنَّوَى، ومُنْزِلَ الـــتَّوْرَاةِ وَالإِنْجيلِ وَالْفُرْقَانِ، أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ كُلِّ شَيْءٍ أَنْتَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِه، اللّهُمَّ أَنْتَ الأَوَّلُ فلَيْسَ قَبْلَكَ شَيْءٌ، وَأَنْتَ الآخِرُ**

---

(١) بخاري (فتح الباري ١١/١١٣)، مسلم ٤/٢٠٨٣.

(٢) څـــوک چې دا اذکار د خوب ځای ته د راتګ په وخت کي ووايي، نو دا هغه لره د يو خادم نه هم غوره دي.

بخاري (فتح الباري ٧/٧١)، مسلم ٤/٢٠٩١.

(٣) مخکيني تخريج دي و کتل شي.(ژباړن)

(٤) مخکيني تخريج دي و کتل شي.(ژباړن)

فَلَـــيْس بَعْـــدَكَ شَيْءٌ، وَأَنْتَ الظَّاهِرُ فلَيْس فَوْقَكَ شَيْءٌ، وَأَنْتَ الْـــبَاطِنُ فلَـــيْسَ دُونَـــكَ شَـــيْءٌ، اقْضِ عَنَّا الدَّيْنَ، وَأَغْنِنَا مِنْ الْفَقْرِ»[1].

۞ الهـــي! د اوو آسمانونو پرودګاره! د لوی عرش پروردګاره! زمونږ پروردګاره! او د هر شي* پروردګاره! د داني* او زني* چوونکيه! د تـــورات او انجيل او فرقان نازلونکيه! پناه غوارم په تا سره د هر هغه شي* له شر نه چي تندی* يې تا نيولی دی[2]، الهي! ته اول يې، له تا نه مخکي څه نشته، او ته آخر يې، له تا نه وروسته څه نشته، او ته (په يقيني دلائلو سره) ښکاره يې، له تا نه بل زيات ښکاره نشته، او ته (د ذات په لحاظ) له (نورو نه) پټ يې، او له تا نه هيڅ شی پټ نه دی[3]، له مونږ نه قرض ليري کړې، او له فقر نه مو (وساتې)، شتمن (مو) کړې.

۱۰۸-۱۰- «الْحَمْـــدُ للّٰه الَّذي أَطْعَمَنَا وَسَقَانَا وَكَفَانَا وَآوَانَا، فَكَمْ مِمَّنْ لاَ كَافِيَ لَهُ وَلاَ مُؤْوِيَ»[4].

---

(۱) مسلم ۲۰۸۴/۴.

(۲) يعني: ستا په قبضه او قدرت کي دی.(ژباړن)

(۳) اخيرنی څلور جملي د مفهوم او معنی په لحاظ ترجمه شويدي، نه د الفاظو په لحاظ.
تحفـــة الأحـــوذي بشرح جامع الترمذي ۳۳۲۲ نمبر حديث، عون المعبود شرح سنن أبي داود ۴۳۹۲ نمبر حديث دي و ګتل شي.(ژباړن)

(٤) مسلم ۲۰۸۵/۴.

۞ تولـــه غوره ستاينه هغه الله لره ده چي مونږ ته يې خوراک* او څښاک* راکړي، او له شر نه يې ساتلي يو، او مونږ ته يې د اوسيدو* ځـــاى راکـــړى، څومره ډير خلک داسي شته چي دوى لره د شر نه ساتونکى، او د اوسيدو ځاى ورکوونکى نشته.

١٠٩-١١- «اللَّهُـــمَّ عَـــالِمَ الْغَيْـــبِ وَالشَّهَادَةِ، فَاطِرَ السَّموات وَالأَرْضِ، رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ وَمَلِيكَهُ، أَشْهَدُ أَنْ لاَّ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ، أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ نَفْسِي، وَمِنْ شَرِّ الشَّيْطَانِ وَشِرْكِهِ، وَأَنْ أَقْتَرِفَ عَلَى نَفْسِي سُوءاً، أَوْ أَجُرَّهُ إِلَى مُسْلِمٍ»[(١)].

۞ ترجمه يې مخکي شويده. [٨٥ نمبر ذكر دي وكتل شي]

١١٠-١٢- ﴿الم﴾ السجده سورت، او د مُلك سورت (تَبَارَكَ) به وايي[(٢)].

١١١-١٣-[(٣)] «اللَّهُـــمَّ أَسْلَمْتُ نَفْسِي إِلَيْكَ، وَفَوَّضْتُ أَمْـــرِي إِلَيْكَ، وَوَجَّهْتُ وَجْهِي إِلَيْكَ، وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِي إِلَيْكَ، رَغْـــبَةً وَرَهْـــبَةً إِلَيْكَ، لاَ مَلْجَا وَلاَ مَنْجَا مِنْكَ إِلاَّ إِلَيْكَ، آمَنْتُ

---

(١) ابو داود ٣١٧/٤، صحيح الترمذي ١٤٢/٣.

(٢) ترمذي، نسائي، صحيح الجامع ٢٥٥/٤.

(٣) کلـــه چـــي د خوب کولو اراده وکړې نو د لمانځه د اوداسه په شان اودس وکړه، او بيا پر ښي اړخ* پريوزه*، او داسي روايه: ... الحديث.

بِكِتَابِكَ الَّذِي أَنْزَلْتَ، وَبِنَبِيِّكَ الَّذِي أَرْسَلْتَ»[١].

۞ الهي! ما خپل ځان تا ته تسليم کړ، او خپل کار مې تا ته وسپاره*، او خپل مخ مې تا ته وګرځاوه*، او خپله شا مې تا ته تکيه کړه[٢]، پداسې حال کې چې ستا له عذاب نه ډار لرم، او ستا و رحمت ته اميد لرم، بيله تا نه بل هيڅ د نجات او پناه ځای نشته، ايمان مې راوړ ستا پر هغه کتاب چې تا نازل کړی، او ستا پر هغه پيغمبر چې تا (مونږ ته) استولی دی.

## ۳۹- په خوب کې له يوې ډډې* نه بلې ډډې ته اوښتلو دعا

۱۱۲- «لاَ إِلَـهَ إِلاَّ اللَّهُ الوَاحِدُ القَهَّارُ، رَبُّ السَّموات والأَرْضِ، وما بَيْنَهُمَا العَزِيزُ الغَفَّارُ»[٣].

۞ بيله يو او غالب الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، د آسمانونو او ځمکې او د هغو په مينځ کې مخلوقاتو پروردګار دی، د زور او غلبې څښتن دی، بخښونکی دی.

(١) پيغمبر ﷺ هغه چا ته چې دا اذکار يې وويل داسې وفرمايل: که چيرې مړ شې، نو مسلمان به مړ شې.
بخاري (فتح الباري ١١/١١٣)، مسلم ٤/٢٠٨١.
(٢) يعني تا ته تکيه او اعتماد مې پر تا دی.(ژباړن)
(٣) دا دوعا به هغه وخت وايې چې په شپه کې له يوه اړخ* نه بل اړخ ته واوړې.
حاکم ١/٥٤٠ صحيح کړی، او ذهبي موافقه ورسره کړيده، نسائي په «عمل اليوم والليلة» کې، او ابن السني روايت کړيدی، صحيح الجامع ٤/٢١٣.

## ۳۰- په خوب کي د نا آرامۍ او له ويرې سره مخامخ کيدلو دعا

۱۱۳- «أَعُـــوذُ بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّاتِ مِنْ غَضَبِهِ وَعِقَابِهِ وَشَرِّ عِبَادِهِ وَمِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِينِ وَأَنْ يَحْضُرُونِ»[۱].

❁ زه پناه غوارم د الله په بشپړ* کلام سره د هغه له غضب او عذاب نه، او د هغه د بندګانو له شر نه، او د شيطانانو له وسوسو نه، او لدې نه چي (شيطانان) ما ته راشي[۲].

## ۳۱- هغه څه چي د خوب ليدو نه وروسته کول پکار دی

۱۱۴-۱- دري ځلي به له چپې خوا نه لاړي توکي[۳].

۲- دري ځلي به له شيطان نه، او د هغه څه له شر نه چي په خوب کي يې ليدلي دی په الله سره پناه غواړي[٤].

۳- خپل خوب به چاته نه وايي[٥].

۴- پر کوم اړخ* چي ويده وي له هغه نه به بل اړخ ته واوړي[٦]

(۱) ابو داود ۱۲/۴، صحيح الترمذي ۱۷۱/۳.
(۲) يعـــني مـــا تـــه په لمانځه کي يا د قرآن په تلاوت او بل عبادت کي راشي، او فکر مي بلې خوا ته واړوي.(ژباړن)
(۳) مسلم ۱۷۷۲/۴.
(٤) مسلم ۱۷۷۲/۴، ۱۷۷۳.
(٥) مسلم ۱۷۷۲/۴.
(٦) مسلم ۱۷۷۳/۴.

٥- که وغواړي نو پورته دي شي او لمونځ* دي وکړي[1].

## ٣٣- د وترو د قنوت دعا

١١٦-١- «اللَّهُمَّ اهْدِني فِيمَنْ هَدَيْتَ، وَعَافِني فِيمَنْ عَافَيْتَ، وَتَوَلَّني فِيمَنْ تَوَلَّيْتَ، وَبَارِكْ لِي فِيمَا أَعْطَيْتَ، وَقِني شَرَّ مَا قَضَيْتَ، فَإِنَّكَ تَقْضِي وَلاَ يُقْضَى عَلَيْكَ، إِنَّهُ لاَ يَذِلُّ مَنْ وَالَيْتَ، [وَلاَ يَعِزُّ مَنْ عَادَيْتَ]، تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ»[2].

❁ الهي! د هغو کسانو په جمله کې چې تا ورته هدايت کړی، ما ته هم هدايت وکړه، او د هغو کسانو په جمله کې چې تا ورته عافيت ورکړی ما ته هم عافيت راکړه، ما هم له شر نه وساته، او د هغو کسانو په جمله کې چې تا محفوظ کړي، ما هم محفوظ کړه، او څه چې دي راکړي، په هغه کې راته برکت واچوه، او څه چې تا فيصله کړې د هغه د شر نه مې وساته، ځکه همدا ته فيصله کونکی يې، او ستا د حکم څوک دفع کونکی نشته[3]، په رښتيا سره چې ته له چا سره دوستي وکړې، هغه به خوار نشي، او له چا سره چې دښمني وکړې،

---

(١) مسلم ١٧٧٣/٣.

(٢) خلورو اصحاب السنن، احمد، دارمي، حاکم، او بيهقي روايت کړيدی، او د مربع قوسونو تر منځ عبارت د بيهقي دی، صحيح الترمذي ١٤٤/١، صحيح ابن ماجه ١٩٤/١، إرواء الغليل د الباني ليکنه ١٧٢/٢.

(٣) دا جمله د مفهوم او معنی په لحاظ ترجمه شويده.(ژباړن)

هغه به عزتمند نشي، ته مبارک ذات يې، او د لويې ځښتن يې اى زمونږ پروردګاره.

١١٧-٢- «اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِرِضَاكَ مِنْ سَخَطِكَ، وَبِمُعَافَاتِكَ مِنْ عُقُوبَتِكَ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْكَ، لاَ أُحْصِي ثَنَاءً عَلَيْكَ، أَنْتَ كَمَا أَثْنَيْتَ عَلَى نَفْسِكَ»[٢].

۞ الهي زه ستا په رضا سره ستا له غضب* نه پناه غواړم، او ستا په معافۍ سره ستا له عذاب* نه پناه غواړم، او له تا نه په تا سره پناه غواړم[٢]، ستا (د شان سره لائقه) ثنا* نشم ويلاى، ته هماغسې يې چې څنګه تا خپل ځان ستاييلى دى.

١١٨-٣- اللّهمّ إِيَّاكَ نَعْبُدُ، ولكَ نُصَلِّي ونَسجُدُ، وإليكَ نَسعَى ونَحفِدُ، نَرجُو رَحْمَتكَ، ونَخْشَى عذابَكَ، إنَّ عَذَابَكَ بالكافرينَ مُلْحَقٌ. اللهمّ إنّا نَستَعينُكَ، ونَستَغفرُكَ، ونُثني عليكَ الخَيْرَ، ولا نَكفُرُكَ، ونُؤمنُ بكَ، ونَخْضَعُ لكَ، ونَخْلَعُ مَنْ يَكْفُرُكَ»[٣].

---

(١) څلورو اصحاب السنن او احمد روايت کړيدى، صحيح الترمذي ٣/١٨٠، صحيح ابن ماجه ١/١٩۴، إرواء الغليل ٢/١٧٥.

(٢) له الله ﷻ نه په الله سره د پناه غوښتلو مقصد: په الله سره دده د جمالي صفاتو لکه غضب، قهر، جبروت او نورو داسې صفاتو له آثارو نه پناه غوښتل دي.(ژباړن)

(٣) بيهقي په «السنن الكبرى» ٢/٢١١ کې روايت کړى، او اسناد يې صحيح بللى دى، او الباني =

۞ الهي! خاص ستا عبادت کوو، او خاص تا ته لمونځ او سجده کوو، او خاص تا ته در دانګو* او ګړندي* درځو، ستا د رحمت امید* لرو، او ستا له عذاب نه ویریږو، په رښتیا سره چې ستا عذاب کفارو ته ورکړه شوی دی، الهي! مونږ له تا نه مدد غواړو، او له تا نه بخښنه* غواړو، او ستا غوره ستاینه کوو، او ستا نا شکري نکوو، او پر تا ایمان لرو، او تا ته عاجزي کوو، او له هغه چا نه لیري ځو چې ستا نا شکري کوي.

## ٣٣- د وترو له سلام نه وروسته ذکر

١١٩- «سُبْحَانَ المَلِكِ القُدُّوسُ» [ثلاث مرات والثالثة يجهرُ بها، ويمدُّ بها صوته، يقولَ:] [«رَبِّ الْمَلاَئكَةِ وَالرُّوحِ»][1].

۞ پاکي ده (د کائناتو) تولواک لره پوره پاکي.

[دا به دري خلي وايي، او په دریم خل به په لوړ او اوږده آواز سره دا وايي:]

د ملائکو او جبرائیل پروردګار.

## ٣٤- د پریشانی او غم (لري کولو) دعا

١٢٠-١- «اللَّهُـــمَّ إِنِّي عَبْدُكَ، ابْنُ عَبْدِكَ، ابْنُ أَمَتِكَ،

=

په ارواء الغلیل ٢/١٧٠ کي وايي: او دا اسناد صحیح دی، او هغه پر عمر باندي موقوف دی.

(١) نسـائي ٣/٢۴۴، دار قطـني او نـورو روایت کړیدی، او د مربع قوسونو مینځ کي عبارت د دارقطـني ٢/٣١ زیـادت دی، او اسناد یې صحیح دی، زاد المعاد د شعیب الأرنؤوط او عبد القادر الأرنؤوط تحقیق ١/٣٣٧.

نَاصِـــيَتِي بِيَدِكَ، مَاضٍ فِيَّ حُكْمُكَ، عَدْلٌ فِيَّ قَضَاؤُكَ، أَسْأَلُكَ بِكُـــلِّ اسْمٍ هُوَ لَكَ، سَمَّيْتَ بِهِ نَفْسَكَ، أَوْ أَنْزَلْتَهُ فِي كِتَابِكَ، أَوْ عَلَّمْتَهُ أَحَداً مِنْ خَلْقِكَ، أَوْ اسْتَأْثَرْتَ بِهِ فِي عِلْمِ الْغَيْبِ عِنْدَكَ، أَنْ تَجْعَـــلَ الْقُـــرْآنَ رَبِيعَ قَلْبِي، وَنُورَ صَدْرِي، وَجَلاَءَ حُزْنِي، وَذَهَابَ هَمِّي»[1].

۞ الهي! زه ستا بنده، ستا د بنده زوى، ستا د مينځي* زوى يم، زما تندى* ستا په لاس كي دى، ستا حكم پر ما جاري دى، ستا فيصله زما په حق كي عادلانه* ده، ستا په هغه ټولو نومونو سره له تا نه سوال كوم، چي تا خپله خپل ځان په هغه نومولى* دى، او يا دي په خپل كتاب كي نازل كړيدى، او يا دي خپل مخلوق نه چا ته ښودلى دى، او يا دي په خـــپل غيبي علم كي له ځان سره ساتلى دى، (پدي ټولو در نه سوال كوم) چي ته قرآن زما د زړه پسرلى*، او د سيني روښنايي، او د غمونو ورك كونكى، او د پريشانيو* ختمونكى وګرځوې.

١٢١-٢- «اللَّهُـــمَّ إِنِّـــي أَعُـــوذُ بِكَ مِنْ الْهَمِّ وَالْحَزَنِ وَالْعَجْـــزِ وَالْكَسَـــلِ وَالْـــبُخْلِ وَالْجُـــبْنِ وَضَلَعِ الدَّيْنِ وَغَلَبَةِ الرِّجَالِ»[2]

---

(١) احمد ١/٣٩١، او الباني هغه صحيح بللى دى.

(٢) بخاري ٧/١٥٨، پيغمبر ﷺ به دا دعا ډيره ويله. بخاري (فتح الباري ١١/١٧٣) دي وكتل شي.

۞ الهـي! زه پـه تا سره پناه غواړم له پریشانۍ او غم نه، او له کمزورتیا (سستۍ) او لټۍ* نه، او بخیل توب* او بې زړه توب* نه، او د قرض له زیاتیدو او د خلکو له غلبې موندلو نه.

## ۳۵- د بې قرارۍ دعا

۱۲۲-۱- «لاَ إِلَـهَ إِلاَّ اللَّهُ الْعَظِيمُ الْحَلِيمُ، لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ، لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ رَبُّ السَّموَاتِ وَرَبُّ الأَرْضِ وَرَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيمِ»[(۱)].

۞ بل د عبادت وړ* معبود* نشته بیله هغه الله نه چې لوی او حلم لرونکې دی ، بل د عبادت وړ* معبود* نشته بیله هغه الله نه چې د لوی عرش څښتن دی، بل د عبادت وړ* معبود* نشته بیله هغه الله نه چې د آسمانونو او ځمکې پروردګار دی، او د عزتمند عرش پروردګار دی.

۱۲۳-۲- «اللَّهُـمَّ رَحْمَتَكَ أَرْجُو فَلاَ تَكِلْنِي إِلَى نَفْسِي طَرْفَةَ عَيْنٍ وأَصْلِحْ لِي شَأْنِي كُلَّهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ»[(۲)].

۞ الهي! زه ستا د رحمت امید لرم، نو زما نفس ته مې د سترګې د رپ* په اندازه هم مه پریږده، او زما کارونه ټول راته اصلاح کړې، بیله

---

(۱) بخاري ۱۵۴/۷، مسلم ۲۰۹۲.

(۲) ابـو داود ۳۲۴/۴، احمـد ۴۲/۵، او الـباني په صحیح ابي داود ۹۵۹/۳ کې د هغه اسناد صحیح بللی دی.

تا نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته.

١٢٤-٣- «لاَ إِلَـهَ إِلاَّ أَنْـتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنْتُ مِنَ الظَّالِمِينَ»(١).

۞ بیله تا نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، پاک یې ته، په رښتیا سره زه له ظالمانو نه یم.

١٢٥-٤- «اللَّهُ اللَّهُ رَبِّي لاَ أُشْرِكُ بِهِ شَيْئاً»(٢).

۞ الله الله زما پروردګار دی، له هغه سره هیڅ شی شریک نه بولم.

## ٣٦- د دښمن او حکمران* سره مخامخ کیدو* دعا

١٢٦-١- «اللَّهُـمَّ إِنَّا نَجْعَلُكَ فِي نُحُورِهِمْ، وَنَعُوذُ بِكَ مِنْ شُرُورِهِمْ»(٣).

۞ الهي! مونږ تا د دوی مقابلې ته ګرځوو، اوپه تا سره د دوی د شر نه پناه غواړو.

١٢٧-٢- «اللَّهُـمَّ أَنْتَ عَضُدِي، وَأَنْتَ نَصِيرِي، بِكَ أَجُولُ، وبِكَ أَصُولُ، وَبِكَ أُقَاتِلُ»(٤).

(١) تـرمذي ٥/٥٢٩، حـاكم ١/٥٠٥، او هغه يې صحيح بللى، او ذهبي موافقه ورسره كړيده، صحيح الترمذي ٣/١٦٨.

(٢) ابو داود ٢/٨٧، صحيح ابن ماجه ٢/٣٣٥.

(٣) ابو داود ٢/٨٩، حاكم ٢/١٤٢، او هغه يې صحيح بللى، او ذهبي ورسره موافقه كړيده.

(٤) ابو داود ٣/٤٢، ترمذي ٥/٥٧٢، صحيح الترمذي ٣/١٨٣.

۞ الهي! ته زما مټ يې، او ته مي مددګار يې، ستا (په قدرت) سره ګرځم راګرځم، او (په دښمن باندي) حمله کوم، او جنګيږم.

۱۲۸-۳- «حَسْبُنَا ونِعْمَ الوَكِيلُ»[1].

۞ الله مونږ ته بس او کافي دی، او هغه ښه کار ساز دی.

## ۳۷- د حکمران* د ظلم نه د ويري دعا

۱۲۹-۱- «اللَّهُــمَّ رَبَّ السَّموات السَّبْعِ وَرَبَّ الْعَرْشِ الْعَظِيم، كُنْ لِي جَاراً مِنْ فُلان بن فُلان، وَأَحْزَابه مِنْ خَلائقكَ، أَنْ يَفْرُطَ عَلَيَّ أَحَدٌ مِنهُمْ، أَوْ يَطْغَى، عَزَّ جَارُكَ وَجَلَّ ثَنَاؤُكَ، ولا إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ»[2].

۞ الهــي، اې د اوو آســمانونو پــروردګاره! او د لوی عرش پروردګاره! زما لپاره پناهګاه شې لدې نه چي فلانکی د فلانکي زوی، او د هغــه ډلي -چــي ستا د مخلوقاتو نه دي- پر ما زياتی او تجاوز* وکړي، چا ته چي ته پناه ورکړې هغه غالبه دی، او ډيره لويه ده ستاينه ستا، او بيله تا نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته.

۱۳۰-۲- «اللهُ أَكبرُ، اللهُ أَعَزُّ مِن خَلْقِهِ جميعاً، اللهُ أَعَزُّ

(۱) بخاري ۱۷۲/۵.

(۲) بخــاري په «الأدب المفرد» ۷۰۷ نمبر حديث کي روايت کړيدی، او الباني په «صحيح الأدب المفرد» ۵۴۵ نمبر حديث کي هغه صحيح بللی دی.

مِمَّـــا أَخــافُ وأَحْذَرُ، أَعُوذُ بالله الذي لا إلهَ إلاّ هوَ، المُمْسكُ السَّمَوات السَّبْع أن يَقَعْنَ على الأَرْضِ إلاّ بإذْنه، من شَرِّ عبدكَ فُلان، وجُنُوده وأَتْباعه وأَشْياعه، منَ الجِنّ والإِنْس، اللهمّ كُنْ لي جاراً منْ شَرِّهم، جلَّ ثَناؤُكَ وعَزَّ جارُكَ، وتَبارَكَ اسْمُكَ، ولا إلَهَ غَيْرُكَ» [ثلاث مرات][1].

ﷺ الله ډېر لوی دی، الله له خپل ټول مخلوق نه زورور دی، الله له هغه چا نه ډېر زورور دی له کوم نه چې زه ويرېږم* او خطر احساسوم، په هغه الله سره پناه غواړم کوم چې بيله هغه نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، او (هغه ذات) چې ټينګونکی داوو آسمانونو دی لدې نه چې بې دده لـــه اجــازې او حکم نه پر ځمکه راولوېږي، (پناه غواړم) ستا د فلانکي بنده له شر نه، او د هغه له انسي او جِني پيرَوانو او لښکرو نه، الهي! د دوی له شر نه زما لپاره پناهګاه شې، او ډېره لويه ده ستاينه ستا، او مـــبارک دی نـــوم ســـتا، او بيله تا نه د عبادت وړ* معبود* نشته.

[درې خلې*]

## ۳۸- د ښمن ته ښيرا* کول

١٣١- «اللَّهُــمَّ مُــنْزِلَ الْكِتَابِ، سَرِيعَ الْحِسَابِ، اهْزِمِ

(١) بخـــاري «الأدب المفـــرد» ٧٠٨ نمبر حديث کې روايت کړيدی، او الباني په «صحيح الأدب المفرد» ٥٤٦ نمبر حديث کې هغه صحيح بللی دی.

الأَحْزَابَ، اللَّهُمَّ اهْزِمْهُمْ وَزَلْزِلْهُمْ»[١].

۞ الهـــي! اې د کـــتاب نازلونکيه! ای ژر* حساب کونکيه! (د دښمنانو) ډلو ته ماتې* ورکړې، الهي! ته ماتې* ورته ورکړې، او (ځمکه يې تر پښو* لاندې) ولړزوې*.

**۳۹- د کوم قوم نه چې ويره* لري، دا دعا به وايي**

**۱۳۲ - «اللَّهُمَّ اكْفِنِيهِمْ بِمَا شِئْتَ»[٢].**

۞ الهـــي! څنګه چې ته غواړې هماغسې مې د هغوی له شر نه وساتې.

**۴۰- څوک چې ايمان کي شک وکړي دهغه دعا**

۱۳۳-۱- په الله سره به پناه غواړي[٣].

۲- کوم شي کي چې شک وي هغه کي به بيا فکر* نکوي[٤].

۱۳۴-۳- يَقولُ: «آمَنْتُ بِاللهِ وَرُسُلِه»[٥].

۞ او وايي به: پر الله او د هغه پر پيغمبرانو مې ايمان راوړی دی.

۱۳۵-٤- يقرأُ قولَه تعالى: ﴿هُوَ الأَوَّلُ وَالآخِرُ وَالظَّاهِرُ

---

(١) مسلم ١٣٦٢/٣.

(٢) مسلم ٢٣٠٠/٤.

(٣) بخاري (فتح الباري ٣٣٦/٦)، مسلم ١٢٠/١.

(٤) بخاري (فتح الباري ٣٣٦/٦)، مسلم ١٢٠/١.

(٥) مسلم ١١٩/١-١٢٠.

وَالْبَاطِنُ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾ [الحديد: ٣] [(١)].

۞ دا آيت به وايي: هغه (يعني الله) اول دى، او آخر دى، او ظاهر دى، او باطن دى، او هغه په هر څه پوه* دى.

## ٤١- دقرض اداء كولو دعا

١٣٦-١- «اللَّهُمَّ اكْفِنِي بِحَلالِكَ عَنْ حَرَامِكَ، وَأَغْنِنِي بِفَضْلِكَ عَمَّنْ سِوَاكَ» [(٢)].

۞ الهي! ستا په حلالو مي ستا له حرامو وساتې، او ستا په فضل مي بيله تا نه بل چا نه بې نيازه* كړې.

١٣٧-٢- «اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ الْهَمِّ وَالْحَزَنِ، وَالْعَجْزِ وَالْكَسَلِ، وَالْبُخْلِ وَالْجُبْنِ، وَضَلَعِ الدَّيْنِ وَغَلَبَةِ الرِّجَالِ» [(٣)].

۞ الهي! زه له پريشانۍ او غم نه، او له كمزورتيا (سستۍ) او لټۍ* نه، او بخيلۍ* او بې زړه توب* نه، او د قرض زياتيدو او د خلكو له غلبې موندلو نه په تا سره پناه غواړم.

---

(١) ابو داود ٣٢٩/٤، او الباني په صحيح ابي داود ٩٦٢/٣ كي د هغه اِسناد حَسَن بللى دى.

(٢) ترمذي ٥٦٠/٥، صحيح الترمذي ١٨٠/٣.

(٣) بخاري ١٥٨/٧.

## ۴۲- په لمانځه او تلاوت كې د وسوسې دعا

۱۳۸ – «أَعُـــوذُ باللهِ مِنَ الشَيْطَانِ الرَّجِيمِ، واتْفُلْ على يِسارِكَ» [ثلاثاً] (۱).

۞ له رټل شوي شيطان نه په الله سره پناه غواړم.

او بيا دې و چپ* طرف ته (لاړې) تف كړي. [درې ځلې]

## ۴۳- چا ته چې يو كار مشكل شي د هغه دعا

۱۳۹ – «اللهمَّ لا سَهْلَ إلاَّ ما جَعَلْتَهُ سَهْلاً، وأنتَ تَجْعَلُ الحَزْنَ إذا شئتَ سَهْلاً» (۲).

۞ الهي! هيڅ آسان شى نشته، مګر هغه چې ته يې آسان كړې، او ته چې وغواړې سخت او ګران آسانوې.

## ۴۴- څوك چې ګناه وكړي، هغه به داسې كوي

۱۴۰ - داسې بنده به نه وي چې ګناه وكړي، او بيا په ښه توګه* اودس وكړي، او بيا پاڅيږي* دوه ركعته لمونځ* وكړي، او بيا له الله نه بخښنه وغواړي، او الله ورته بخښنه او عفو ونكړي (۳).

---

(۱) مسلم ۱۷۲۹/۴ له عثمان بن ابي العاص ﷺ نه روايت كړيدى، او په هغه كې داسې راغلي دي: ما همداسې وكړه، نو الله ﷻ هغه له ما نه ليرې كړه.

(۲) صحيح ابن حبان ۲۴۲۷ نمبر حديث (موارد)، ابن السني ۳۵۱ نمبر حديث، او حافظ وايي: دا حديث صحيح دى. او عبد القادر الأرناؤوط هم هغه د نووي د اذكارو په تحقيق ص۱۰٦ كې هغه صحيح بللى دى.

(۳) ابو داود ۸٦/۲، ترمذي ۲۷۵/۲، او الباني په صحيح ابي داود ۲۸۳/۱ كې هغه صحيح بللى دى.

## ۴۵- د شيطان او د هغه د وسوسو د لیرې کولو دعاګانې

۱۴۱- په الله ﷻ سره له شیطان نه پناه غوښتل[۱].

۱۴۲- آذان کول[۲].

۱۴۳- ذکر کول، او د قرآن تلاوت کول[۳].

## ۴۶- کله چې یې د خوښې خلاف کار پېښ شي، او یا له کوم کار نه عاجز شي، داسې به وایي

۱۴۴- «قَدَّرَ اللّٰهُ وما شاءَ فَعَلَ»[٤].

---

(۱) ابـو داود ۱/۲۰٦، ترمذي، صحيح الترمذي ۱/۷۷، او د المؤمنون سورت، ۹۸-۹۹ آیتونه دې وکتل شي.

(۲) مسلم ۱/۲۹۱، بخاري ۱/۱۵۱.

(۳) (پیغمبر ﷺ فرمایي) خپلو کورونو څخه هدیرې* مه جوړوی، شیطان له هغه کور نه تښتي چې په هغه کې د بقرې سورت ویل کیږي.

مسلم ۱/۵۳۹. او له هغو شیانو نه چې شیطان شړي* او لیرې کوي یې د سهار او ماښام اذکار، د ووده کیدو او ویښیدو اذکار، او کور او مسجد ته ننوتلو او له هغه نه وتلو اذکار، او نور شرعي اذکار لکه آیت الکرسي د خوب په وخت کې، د بقرې د سورت آخیرني دوه آیتونه. او څوک چې «لا إله إلا الله وحده لا شريك له، له الملك، وله الحمد، وهو على كل شيء قدير» سل ځلې ووايي، نو دا به په هغه تولـه ورځ کې دده لپاره له شیطان نه د ساتلو وسیله وي. او همدارنګه آذان هم شیطان شړي او لرې کوي یې.

(٤) (پیغمبر ﷺ فرمایي) قوي مسلمان له کمزوري مسلمان نه الله ته زیات غوره* دی، او په دواړو کې خیر شته، په هغه څه حرص او کوښښ وکړه چې تاته ګټه لري، او له الله ﷻ نه مرسته وغواړه، او مه عاجزه کیږه، او که یو څه درته پېښ شي، نو داسې مه وایه: چې که داسې مې کړي وای، نو داسې به شوي وای، بلکه داسې ووایه: چې الله ﷻ (همدا زما) په تقدیر کې لیکلي وه، او څه یې چې وغوښتل وې کړل، ځکه «لَوْ» (یعني: «که چیرې» کلمه استعمالول =

۞ الله (دا کار) په ازلي تقدير کي (همداسي) ليکلی وو، او څنګه چي يې وغوښتل هماغسي يې وکړل.

## ۴۷- د پيدا شوي ماشوم* مور او پلار ته مبارکي ورکول، او د هغې جواب

۱٤٥- «بـــارَكَ اللهُ لـــكَ في الموهُــوبِ لكَ، وشَكرتَ الواهـــبَ، وبَلَغَ أَشُدَّهُ، ورُزِقْتَ بِرَّهُ»، ويردّ عليه المُهَنَّأُ فيقول: «بـــارَكَ اللهُ لـــكَ وبارَكَ عليكَ، وجزاكَ اللهُ خيراً، ورَزَقَكَ اللهُ مِثْلَهُ، وأَجْزَلَ ثوابَكَ»[1].

۞ الله دي ستا په درکړل شوي (ماشوم) کي برکت واچوي، او (د هغــه) د ورکونکــي شکر اداء کړې، او ماشوم دي خپل قوت او ځواني ته ورسيږي، او د هغه نيکي* دي په نصيب شه.

او د ماشوم مور او پلار به په جواب کي داسي وايي: الله دي تا ته برکت درکړي، او پر تا دي برکت کښيږدي، او الله دي تا ته نيکه جزا (ثواب) درکړي، او همداسي ماشوم دي در په برخه* کړي، او ثواب دي تا ته زيات کړي.

=

او ويل) دشيطان کارونو ته لاره* خلاصوي*. مسلم ۲۰۵۲/۴.

(۱) الاذکار د نووي ليکنه ص۳۴۹، صحيح الاذکار د سليم الهلالي ليکنه ۷۱۳/۲.

## ۴۸- د ماشومانو د حفظ او امان لپاره دعا

١٤٦- كَانَ رَسُولُ اللَّه ﷺ يُعَوِّذُ الْحَسَنَ وَالْحُسَيْنَ يَقُولُ: «أُعِيذُكُمَا بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّةِ مِنْ كُلِّ شَيْطَانٍ وَهَامَّةٍ، وَمِنْ كُلِّ عَيْنٍ لامَّةٍ»[١].

۞ رسول الله ﷺ به د حَسَن او حُسين لپاره پناه غوښتله، او داسي به يې ويل[٢]: ستاسو دواړو لپاره زه د الله په كامل كلام سره له هر شيطان، او زهرناك (حيوان) نه، او له هري آفت او ضرر رسونكي ستركي نه پناه غواړم.

## ۴۹- د بيمار د پوښتني په وخت هغه ته دعا

١٤٧-١- «لا بَأْسَ، طَهُورٌ إِنْ شَاءَ اللَّهُ»[٣].

۞ څه پروا نشته، ان شاء الله (دا بيماري به ستا د ګناهونو) د پاكوالي سبب به وي.

١٤٨-٢- «أَسْأَلُ اللَّهَ الْعَظِيمَ، رَبَّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ، أَنْ يَشْفِيَكَ» [سبع مرات][٤].

---

(١) بخاري ۴/١١٩، له ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت كړيدى.
(٢) يعني د هغوى د حفاظت لپاره به يې دا دعا كوله.(ژباړن)
(٣) بخاري (فتح الباري ١١٨/١٠).
(٤) (پيغمبر ﷺ فرمايي) داسي مريض به نه وي چي اجل يې نه وي راغلى، او يو مسلمان بنده يې پوښتني ته راشي او دا (پورتنى) دعا اووه خلي ووايي، مګر دا چي روغ به شي. ترمذي، ابو داود، صحيح الترمذي ٢١٠/٢، صحيح الجامع ١٨٠/٥.

❁ له هغه لوی او عظمت والا الله نه سوال کوم چې د لوی عرش څښتن دی، چې تا لره شفا او روغتيا درکړي. [اووه ځلې]

## ۵۰- د بيمار* د پوښتنې کولو فضيلت

۱۴۹- قال ﷺ: «إذا عادَ الرجُلُ أخاهُ الْمُسْلِمَ مَشَى فِي خِرَافَةِ الْجَنَّةِ حَتَّى يَجْلِسَ، فَإِذَا جَلَسَ غَمَرَتْهُ الرَّحْمَةُ، فَإِنْ كَانَ غُدْوَةً صَلَّى عَلَيْهِ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ حَتَّى يُمْسِيَ، وَإِنْ كَانَ مَسَاءً صَلَّى عَلَيْهِ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ حَتَّى يُصْبِحَ» (۱).

❁ پيغمبر ﷺ فرمايي: کله چې يو سړی د خپل (بيمار) مسلمان ورور پوښتنې ته ورځي، نو دی د جنت په ميوو کې روان وي تر څو چې کښيني*، کله چې کښيني نو په رحمت کې پټ شي، که (دا وخت) سهار* وي نو اويا زره ملائکې* به ده ته دعا کوي، تر څو چې ماښام* کيږي، او که (دا وخت) ماښام وي، نو اويا زره ملائکې به ده ته دعا کوي تر څو چې سهار کيږي.

## ۵۱- د ژوند نه نا اميده بيمار* دعا

۱۵۰-۱- «اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي وَارْحَمْنِي وَأَلْحِقْنِي بِالرَّفِيقِ

---

(۱) ترمذي، ابن ماجه، احمد، صحيح ابن ماجه ۱/۲۴۴، صحيح الترمذي ۱/۲۸۶، او احمد شاکر هغه صحيح بللی دی.

الأَعْلَى»(١).

❁ الهي! ما ته بخښنه وكړې، او پر ما رحم وكړې، او د لوړ مقام والا پيغمبرانو سره مي يو ځاى كړې.

١٥١-٢- جَعلَ النبيُّ ﷺ عندَ مَوته يُدْخل يَدَيْه في الْمَاء فَيَمْسَحُ بهمَا وَجْهَه ويَقُول : «لاَ إِلَه إلاَّ اللَّه، إِنَّ لِلْمَوْتِ لَسَكَرَات»(٢).

❁ پيغمبر ﷺ د خپل مرګ په وخت كي خپل لاسونه په اوبو كي وهل او بيا به يې خپل مخ په هغه مسه* كاوه، او ويل به يې: بيله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، په رښتيا سره چي مرګ ډيري سختى لري.

١٥٢-٣- «لاَ إِلَهَ إلاّ اللَّهُ وَاللَّهُ أَكْبَرُ، لاَ إِلَهَ إلاّ اللَّهُ وَحْدَهُ، لاَ إِلَهَ إلاّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لاَ إِلَهَ إلاّ اللَّهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، لاَ إِلَهَ إلاّ اللَّهُ وَلاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إلاّ بِاللَّه»(٣).

(١) بخاري ١٠/٧، مسلم ١٨٩٣/٤.

(٢) بخاري (فتح الباري ١٤٤/٨) او په هغه كي د مسواک ذكر هم شويدى.

(٣) ترمذي، ابن ماجه، او الباني هغه صحيح بللى دى، صحيح الترمذي ١٥٢/٣، صحيح ابن ماجه ٣١٧/٢.

۞ بـــيله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، الله ډير لوی دی، بيله يو الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، هغه يو دی، بيله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، هغه يو دی، شريک نلري، بيله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، هغه لره ټولواکي ده، هغه لره پوره غوره ستاينه ده، بيله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، او نشته طاقت او قوت (د ګناه نه د ساتلو* او د نيکيو د کولو) د يو الله په مدد او توفيق سره.

## ۵۲- ځکندن* حالت کي سړي ته يادونه

۱۵۳- (پيغمبر ﷺ فرمايي) د چا چي آخري خبره «لا إله إلا الله» وي، نو جنت ته به داخل شي[۱].

## ۵۳- چا ته چي مصيبت رسيدلی وي، د هغه دعا

۱۵٤- «إِنَّـــا لِلَّـــهِ وَإِنَّـــا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ، اللهمَّ أْجُرْنِي في مُصِيبَتِي، وأَخْلِفْ لي خَيراً منها»[۲].

۞ بي شکه چي مونږ الله لره يو، او هغه ته ورتلونکي يو، اې الله ما ته زما په مصيبت کي اجر راکړې، او د هغه په بدل کي ما ته له هغه نه ښه راکړې.

---

(۱) ابو داود ۳/۱۹۰، صحيح الجامع ۵/۴۳۲.
(۲) مسلم ۲/٦۳۲.

## ۵۴- د مړي سترګي بندولو په وخت دعا

١٥٥- «اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِفُلان (باسمه) وَارْفَعْ دَرَجَتَهُ فِي الْمَهْدِيِّينَ، وَاخْلُفْهُ فِي عَقِبِهِ فِي الْغَابِرِينَ، وَاغْفِرْ لَنَا وَلَهُ يَا رَبَّ الْعَالَمِينَ، وَافْسَحْ لَهُ فِي قَبْرِهِ وَنَوِّرْ لَهُ فِيهِ»[1].

۞ اې الله! و فلانکي (نوم به يې واخلي) ته بخښنه وکړې او د هدايت شويو کسانو په جمله کي يې درجه لوړه کړې، او د هغه باز ماندګانو لپاره له هغه نه وروسته سرپرست اوسې، او مونږ او ده ته بخښنه وکړې اې د مخلوقاتو پروردګاره! او قبر يې ورته پراخ، او روښانه* کړې.

## ۵۵- مړي ته په جنازه کي دعا

١٥٦-١- «اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ وَارْحَمْهُ وَعَافِهِ وَاعْفُ عَنْهُ، وَأَكْرِمْ نُزُلَهُ، وَوَسِّعْ مُدْخَلَهُ، وَاغْسِلْهُ بِالْمَاءِ وَالثَّلْجِ وَالْبَرَدِ، وَنَقِّهِ مِنَ الْخَطَايَا كَمَا نَقَّيْتَ الثَّوْبَ الأَبْيَضَ مِنَ الدَّنَسِ، وَأَبْدِلْهُ دَاراً خَيْراً مِنْ دَارِهِ، وَأَهْلاً خَيْراً مِنْ أَهْلِهِ، وَزَوْجاً خَيْراً مِنْ زَوْجِهِ، وَأَدْخِلْهُ الْجَنَّةَ، وَأَعِذْهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ [وَعَذَابِ النَّارِ]»[2].

۞ اې الله! ده ته بخښنه وکړې او رحم پر* وکړې، او عافيت

(١) مسلم ٢/٦٣٤.

(٢) مسلم ٢/٦٦٣.

ورله ورکړې، او عفوه ورته وکړې، او غوره میلمستیا یې وکړې، او د داخلیدو ځای یې پراخه کړې، او په اوبو او واوره او ږلۍ سره یې ووینځې، او له ګناهونو نه یې داسې پاک کړې لکه څنګه چې دې سپینه جامه له خیرو* نه پاکه کړیده، او (د دنیا) له کور نه غوره کور، او له کورنۍ نه یې غوره کورنۍ، او له ښځې نه یې غوره ښځه ورکړې، او جنت ته یې داخل کړې، او د قبر له عذاب او د دوزخ له عذاب نه یې وساتې.

۱۵۷-۲- «اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا وَمَيِّتِنَا، وَشَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا، وَصَغِيرِنَا وَكَبِيرِنَا، وَذَكَرِنَا وَأُنْثَانَا، اللَّهُمَّ مَنْ أَحْيَيْتَهُ مِنَّا فَأَحْيِهِ عَلَى الإِسْلاَمِ، وَمَنْ تَوَفَّيْتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ عَلَى الإِيمَانِ، اللَّهُمَّ لاَ تَحْرِمْنَا أَجْرَهُ، وَلاَ تُضِلَّنَا بَعْدَهُ»(۱).

۞ اې الله، زمونږ ژوندي ته، او مړي ته، او حاضر ته، او غائب ته، او واړه ته، او لوی ته، او نر ته، او ښځې ته بخښنه وکړې، اې الله! له مونږ نه چې چا ته ژوند ورکړي، نو د اسلام سره ژوند ورکړه، او له مونږ نه چې چا ته مرګ راولې، نو له ایمان سره یې مړ کړې، اې الله! د دې مړي له اجر نه مو مه محرومه وې، او له هغه نه وروسته مو مه

(۱) ابن ماجه ۱/۴۸۰، احمد ۲/۳۶۸، صحيح ابن ماجه ۱/۲۵۱.

ګمراه* کوې.

١٥٨-٣- «اللّٰهُمَّ إنَّ فُلاَنَ بْنَ فُلاَنٍ فِي ذِمَّتِكَ وَحَبْلِ جِوَارِكَ، فَقِهِ مِنْ فِتْنَةِ الْقَبْرِ وَعَذَابِ النَّارِ، وَأَنْتَ أَهْلُ الْوَفَاءِ وَالْحَقِّ، فَاغْفِرْ لَهُ وَارْحَمْهُ، إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ»(١).

۞ اې الله! په رښتيا سره فلانکی د فلانکي زوی ستا په حفظ او ستا په پناه کې دی، نو د قبر له ازمايش نه، او د دوزخ* له عذاب نه يې وساتې، او ته د وفا او پيمان ښښتن* يې، نو هغه ته بخښنه وکړې، او رحم پر* وکړې، بيشکه ته بخښونکی بې حده مهربان يې.

١٥٩-٤- «اللّٰهُمَّ عَبْدُكَ، وَابْنُ أَمَتِكَ، احْتَاجَ إِلَى رَحْمَتِكَ، وَأَنْتَ غَنِيٌّ عَنْ عَذَابِهِ، إِنْ كَانَ مُحْسِناً فَزِدْ فِي حَسَنَاتِهِ، وَإِنْ كَانَ مُسِيئاً فَتَجَاوَزْ عَنْهُ»(٢).

۞ الهي! ستا بنده، او ستا د مينځې* زوی دی، ستا رحمت ته محتاج دی، او ته ده ته عذاب ورکولو نه بې نيازه* يې، که نيک عمله وي نو نيکۍ يې نوري هم زياتې کړې، او که ګنهګاره وي نو عفوه ورته وکړې.

(١) ابن ماجه، صحيح ابن ماجه ١/٢٥١، ابو داو ٣/٢١١.

(٢) حـاكم ١/٣٥٩، او هغه يې صحيح بللی، او ذهبي ورسره موافقه کړيده، احكام الجنائز د الباني ليکنه ص١٢٥.

## ۵٦- ماشوم ته د هغه په جنازه کې دعا

۱٦۰-۱- «اللَّهُمَّ أَعِذْهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ»[۱].

۞ الهي! د قبر له عذاب نه يې وساتې.

[وإن قال] «اللَّهُمَّ اجْعَلْهُ فَرَطاً وذُخْراً لوالديه، وشَفيعاً مُجَاباً، اللهمّ ثَقِّلْ به مَوَازينَهُما وأَعْظِمْ به أُجُورَهما، وأَلْحِقْهُ بصَالِحِ المُؤْمنينَ، واجعَلْهُ في كَفالة إبراهيمَ، وَقِه برَحْمَتكَ عذَابَ الجَحيم، وأَبْدِلْهُ، داراً خيراً من داره، وأهلاً خيراً من أَهله، اللهمّ اغْفِرْ لأَسْلافِنا، وأَفراطِنا، ومَنْ سَبَقَنا بالإيمانِ» [فحسَنٌ][۲].

[او که دا دعا ووايې نو بهتره به وي:]

الهي! ته يې د خپل مور او پلار لپاره مخکښ* او ذخيره، او د قبول شوي شفاعت خاوند وګرځوې، الهي! د ده په ذريعه يې د مور او پلار (د اعمالو) تلې* درنې کړې، او اجرونه يې زيات کړې، او له نيکو

---

(۱) سعيد بن المسيب وايي: په ابو هريره پسې مې پر يوه ماشوم باندې (د جنازې) لمونځ وکړ، چې هيڅ ګناه يې نه وه کړې، او وامې وريده چې ويل يې:... باقي حديث.
مالک په موطا ۲۸۸/۱ کې، ابن ابي شيبه په مصنف ۲۱۷/۳، او بيهقي ۹/۴ روايت کړيدی، او شعيب الأرنؤوط د شرح السنة للبغوي په تحقيق ۳۵۷/۵ کې د هغه اسناد صحيح بللی دی.

(۲) المغني د ابن قدامه ۴۱٦/۳، الدروس المهمة لعامة الأمة د علامه عبد العزيز بن باز رحمت الله عليه ليکنه ص۱۵.

مسلمانانو سره يې يو ځای کړې، او د ابراهيم عليه السلام په ضمانت کې يې وګرځوې، او په خپل رحمت سره يې د دوزخ له عذاب نه وساتې، او (د دنيا) له کور نه غوره کور، او له کورنۍ نه يې غوره کورنۍ ورکړې، الهي! و هغو کسانو ته بخښنه وکړې چې له مونږ نه مخکې تللي دي، او کوم چې له مونږ نه مخکې مومنان تېر شوي دي.

١٦١-٢- «اللَّهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا فَرَطاً، وَسَلَفاً، وَأَجْراً»[١].

۞ الهي! ته يې زمونږ لپاره مخکښ*، او اجر (جوړونکی) وګرځوې.

## ٥٧- د تعزيت دعا

١٦٢- «إِنَّ للَّه مَا أَخَذَ، وَلَهُ مَا أَعْطَى، وَكُلّ شيءٍ عِنْدَهُ بِأَجَلٍ مُسَمًّى، فَلْتَصْبِرْ وَلْتَحْتَسِبْ»[٢].

[وإن قال] «أَعْظَمَ اللهُ أجْرَكَ، وأَحْسَنَ عَزاءكَ، وغَفَرَ لِمَيِّتِكَ» [فحسن][٣].

---

(١) حسن (بصري) به پر ماشوم د فاتحې سورت لوست، او ويل به يې:... باقي حديث. بغوي په شرح السنة ٣٥٧/٥ کې، عبد الرزاق په مصنف کې په ٦٥٨٨ نمبر حديث کې، او بخاري په کتاب الجنائز کې مُعَلّق روايت کړيدی، ٦٥ باب قراءة فاتحة الكتاب على الجنازة ١١٣/٢.

(٢) بخاري ٨٠/٢، مسلم ٦٣٦/٢.

(٣) الاذكار د نووي ليکنه ص١٢٦.

۞ الله لــــره دي څــــه چي يې واخيستل، او هغه لره دي څه چي ورکوي، او هر څه دده په نزد تر ټاکلي* نيټې* پوري دي... او ښايي چي صبر وکړې او (له الله ﷻ) نه ثواب وغواړې.

[او که دا ووايي نو بهتره به وي:]

الله دي تا لره لوی اجر درکړي، او تا لره دي ښه تسلي درکړي، او ستا مړي ته دي بخښنه وکړي.

## ۵۸- د مړي ښخولو وخت کي دعا

۱٦۳- «بِسْمِ اللَّهِ، وَعَلَى سُنَّةِ رَسُولِ اللَّهِ»[۱].

۞ د الله په نوم سره، او د پيغمبر ﷺ په سنت سره (يې ښخوو).

## ۵۹- د مړي ښخولو* وروسته دعا

۱٦٤- «اللَّهُمَّ اغْفِرْ له، اللَّهُمَّ ثَبِّتْهُ»[۲].

۞ الهي! هغه ته بخښنه وکړې، الهي! ته يې (په سوال وجواب کي) ثابت قدمه لرې.

---

(۱) ابــو داود ۳/۳۱۴ په صحيح سند سره، او احمد په دي لفظ سره: «بسم الله وعلى ملة رسول الله» په صحيح سند روايت کړيدی.

(۲) پيغمــبر ﷺ به چي کله د مړي له ښخولو نه فارغ شو، نو په قبر به يې ودريد، او ويل به يې: خپل ورور تــه (له الله نه) بخښنه وغواړی، او د هغه لپاره (په سوال وجواب کي) د ثابت قدمی دعا وکړی، ځکه له هغه نه همدا اوس پوښتنه کيږي.

ابو داود ۳/۳۱۵، حاکم ۱/۳۷۰، او هغه يې صحيح بللی، او ذهبي ورسره موافقه کړيده.

## ٦٠- د قبرونو د زيارت كولو دعا

١٦٥- «السَّلاَمُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الدِّيَارِ مِنْ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُسْلِمِينَ، وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللَّهُ بِكُمْ لاَحِقُونَ، [وَيَرْحَمُ اللهُ الْمُسْتَقْدِمِينَ مِنَّا وَالْمُسْتَأْخِرِينَ]، أَسْأَلُ اللَّهَ لَنَا وَلَكُمْ الْعَافِيَةَ»[1].

۞ اې ددې ځايونو اوسيدونكو مومنانو او مسلمانانو! پر تاسو دې سلام وي، او ان شاء الله مونږ هم په تاسو پسې يو، او الله ﷻ دې زمونږ په مخكينيو او وروستنيو رحم وكړي، زه ځان لره او تاسو لره له الله ﷻ نه عافيت غواړم.

## ٦١- د باد (سيلۍ) الوتلو په وخت دعا

١٦٦-١- «اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَهَا، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهَا»[2].

۞ الهي! له تا نه د دې (باد) د خير سوال كوم، او له شر نه يې په تا سره پناه غواړم.

١٦٧-٢- «اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَهَا وَخَيْرَ مَا فِيهَا وَخَيْرَ مَا أُرْسِلَتْ بِهِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهَا وَشَرِّ مَا فِيهَا وَشَرِّ مَا

(١) مسلم ٦٧١/٢، ابن ماجه په پورتنى الفاظو سره ٤٩٣/١ له بريده ﷺ نه روايت كړيدى، او د مربع قوسونو په مينځ كې عبارت د مسلم ٦٧١/٢ روايت دى له عائشه رضي الله عنها نه.

(٢) ابو داود ٣٢٦/٤، ابن ماجه ١٢٢٨/٢، صحيح ابن ماجه ٣٠٥/٢.

أُرْسِلَتْ بِه»[(۱)].

۞ الهي! زه له تا نه د دې (باد) د خير سوال کوم، او د هغه څه د خير سوال در نه کوم چي په هغه کي دی، او کوم خير چي لـــه ځان سره يې راوړی دی، او په تا سره پناه غواړم د هغه له شر نه، او د هغه څه له شر نه چي په هغه کي دی، او له هغه شر نه چي له ځان سره يې راوړی دی.

## ٦٢- د تالندي* دعا

۱٦۸- «سُـــبْحَانَ الَّذِي يُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهِ، وَالْمَلاَئِكَةُ مِنْ خِيفَتِه»[(۲)].

۞ پاک دی هغه ذات چي تالنده* او ملائکي د هغه له ويري نه د هغه حمد او ثنا او تسبيح وايي.

## ٦۳- د استسقاء* لپاره څو دعاګاني

۱٦۹-۱- «اللَّهُمَّ اسْقِنَا غَيْثًا مُغِيثًا مَرِيئًا مَرِيعًا، نَافِعًا غَيْرَ ضَارٍّ، عَاجِلاً غَيْرَ آجِلٍ»[(۳)].

---

(۱) مسلم ٦۱٦/۲، بخاري ۷٦/۴.

(۲) عـــبد الله بن الزبير ﷺ چي به کله د تالندي* آواز واوريده، نو خبري به يې بندي کړې، او ويل به يې:... باقي حديث.
موطا ۹۹۲/۲، او الباني وايي: (ددې حديث) اسناد صحيح او موقوف دی.

(۳) ابو داود ۳۰۳/۱، او الباني په صحيح ابي داود ۲۱٦/۱ کي هغه صحيح بللی دی.

۞ الهـــي! پر مونږ باران وه ورَوې، نجات ورکونکی، مزه دار، وابنه شنه کونکی، فائده رسونکی، ضرر نه رسونکی، ژر کیدونکی، نه ځنډیدونکی.

١٧٠-٢- «اللَّهُمَّ أَغِثْنَا اللَّهُمَّ أَغِثْنَا اللَّهُمَّ أَغِثْنَا»[١].

۞ الهي! پر مونږ باران وه ورَوې، الهي! پر مونږ باران وه ورَوې، الهي! پر مونږ باران وه ورَوې.

١٧١-٣- «اللَّهُـــمَّ اسْـــقِ عِـــبَادَكَ، وَبَهائِمَكَ، وَانْشُرْ رَحْمَتَكَ، وَأَحْيِ بَلَدَكَ الْمَيِّتَ»[٢].

۞ الهي! خپل بنده ګان، او خپل څارَوي* څروب کړه، او خپل رحمت خپور کړه، او خپل مړ ښار ژوندی کړه.

## ٦٤- د باران اوریدو په وخت کي دعا

١٧٢- «اللَّهُمَّ صَيِّباً نَافِعاً»[٣].

۞ الهي! د خير او فائدې باران (ېې کړې).

## ٦٥- د باران اوریدو وروسته دعا

١٧٣- «مُطِرْنَا بِفَضْلِ اللَّهِ وَرَحْمَتِه»[٤].

---

(١) بخاري ١/٢٢٤، مسلم ٢/٦١٣.
(٢) ابو داود ١/٣٠٥، او الباني په صحيح ابي داود ١/٢١٨ هغه حَسَن بللی دی.
(٣) بخاري (فتح الباري ٢/٥١٨).
(٤) بخاري ١/٢٠٥، مسلم ١/٨٣.

❁ د الله ﷻ په فضل او رحمت سره پر مونږ باران وه ورید.

## ٦٦- د آسمان شین کیدو دعا

۱۷٤- «اللَّهُـمَّ حَوَالَيْـنَا وَلاَ عَلَيْنَا، اللَّهُمَّ عَلَى الآكَامِ وَالظِّرَابِ وَبُطُونِ الأَوْدِيَةِ وَمَنَابِتِ الشَّجَرِ»[(۱)].

❁ الهـي! زمونږ په شاوخوا (بې وه ورړوه)، او نه پر مونږ باندې، الهـي! پـر غرو رغونو او د خوړونو په مینځونو، او د ونو شنه کیدلو ځایونو کې بې وه ورړوه.

## ٦٧- د نوي میاشتي لیدو دعا

۱۷٥- «اللَّـهُ أَكْـبَرُ، اللَّهُمَّ أَهِلَّهُ عَلَيْنَا بِالأَمْنِ وَالإِيمَانِ، وَالسَّـلاَمَةِ وَالإِسْـلاَمِ، وَالتَّوْفِيقِ لِمَا تُحِبُّ رَبَّنَا وَتَرْضَى، رَبُّنَا وَرَبُّكَ اللَّهُ»[(۲)].

❁ الله ﷻ ډیـر لوی دی، الهي! ته دغه (نوې میاشت) پر مونږ باندې راوخیژوه، له امن او ایمان سره، او له سلامتیا او اسلام سره، او له توفیق سره وهغه څه ته چې ته یې خوښوې.

(اې میاشتې!) زمونږ او ستا پروردګار الله دی.

## ٦٨- د روژه ماتي په وخت کي دعا

۱۷٦-۱- «ذَهَبَ الظَّمَأُ، وَابْتَلَّتْ الْعُرُوقُ، وَثَبَتَ الأَجْرُ

---

(۱) بخاري ۱/۲۲۳، مسلم ۲/٦۱۳.

(۲) ترمذي ٥/٥۰۴، دارمي په خپلو الفاظو سره ۱/۳۳٦، صحيح الترمذي ۳/۱٥۷.

إِنْ شَاءَ اللَّهُ»[١].

۞ تنده ولاړه*، او رګونه لانده* شول، او که الله ﷻ وغواړي اجر حاصل شوی دی.

١٧٧-٢- «اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ بِرَحْمَتِكَ الَّتِي وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ أَنْ تَغْفِرَ لِي»[٢].

۞ الهـــي! زه ستا په هغه رحمت سره چي هر څه ته رسيدونکی دی، له تا نه سوال کوم چي ماته بخښنه وکړې.

## ٦٩- د ډوډۍ خوړلو نه مخکي دعا

١٧٨-١- (پيغمـــبر ﷺ فـــرمايي) کله چي له تاسو نه څوک خوراک کوي، نو «بِسمِ اللهِ» دي ووايي، او که يې په (د خوراک) په اول کـــي (بسم الله) هېر شول، نو داسي دي ووايي: «بِسْمِ اللَّهِ فِي أَوَّلِهِ وَآخِرِهِ» يعني: په اول او آخر کي د الله ﷻ په نامه (سره خوراک کوم)[٣].

١٧٩-٢- «مَنْ أَطْعَمَهُ اللَّهُ الطَّعَامَ فَلْيَقُلْ: اللَّهُمَّ بَارِكْ لَنَا

---

(١) ابو داود ٢/٣٠٦ او نورو روايت کړيدی، صحيح الجامع ٣/٢٠٩.

(٢) ابـــن ماجـــه ١/٥٥٧، له عـــبد الله بن عمرو ﷺ د دعاګانو نه يې روايت کړيدی، او حافظ د الاذکار په تخريج کي هغه حَسَن بللی دی، شرح الاذکار ٣/٣٣٢.

(٣) ابو داود ٣/٣٤٧، ترمذي ٤/٢٨٨، صحيح الترمذي ٢/١٦٧.

فيه، وَأَطْعِمْنَا خَيْراً مِنْهُ، وَمَنْ سَقَاهُ اللَّهُ لَبَناً فَلْيَقُلْ: اللَّهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيهِ، وَزِدْنَا مِنْهُ»[1].

۞ (پيغمبر ﷺ فرمايي) چا ته چې الله ﷻ خواړه ورکړي[2]، نو داسي به وايي: الهي! مونږ ته پدې (خوارو*) کي برکت واچوې، او له هغه نه ښه (خواړه) راکړې.

او په چا چې الله ﷻ شودې* وڅښي*، نو داسي به وايي: الهي! مونږ ته په هغه کي برکت واچوې، او مونږ ته نور هم زيات راکړې.

## ۷۰- له خوراک نه وروسته دعا

۱۸۰-۱- «الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَطْعَمَنِي هَذَا وَرَزَقَنِيهِ مِنْ غَيْرِ حَوْلٍ مِنِّي وَلاَ قُوَّةٍ»[3].

۞ ټوله غوره ستاينه هغه الله لره ده چې په ما يې دا خواړه* وخوړل، او هغه يې پرته زما د کوم توان او طاقت نه ما ته راکړل[4].

۱۸۱-۲- «الْحَمْدُ لِلَّهِ حَمْداً كَثِيراً، طَيِّباً، مُبَارَكاً فِيهِ، غَيْرَ [مَكْفِيٍّ، وَلاَ] مُوَدَّعٍ، وَلاَ مُسْتَغْنًى عَنْهُ رَبَّنَا»[5].

---

(۱) ترمذي ۵/۵۰٦، صحيح الترمذي ۳/۱۵۸.

(۲) يعني: خوراک وکړي، يا څه وخوري.(ژباړن)

(۳) بيله نسائي نورو اصحاب السنن روايت کړيدی، صحيح الترمذي ۳/۱۵۹.

(٤) يعني: بيله کوم تکليف او ستړيا نه يې په ډيره آسانی سره ما ته راکړه.(ژباړن)

(۵) بخاري ٦/۲۱۴، ترمذي په څېلو الفاظو سره ۵/۵۰۷.

۞ ترلـــــه غوره ستاينه الله لره ده، ستاينه ډيره زياته، پاکه، او با برکته، نه پوره کيدونکې، او نه پريښودونکې، او له هغه نه نه مُستغني* کيدونکي ستاينه، اې زمونږ پروردګاره!.

## ۷۱- کوربه ته د ميلمه دعا

۱۸۲- «اللَّهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِيمَا رَزَقْتَهُمْ، وَاغْفِرْ لَهُمْ وَارْحَمْهُمْ»[(١)].

۞ الهي! تا چي دوی ته څه ورکړي په هغه کي برکت واچوې، او هغوی ته بخښنه وکړې، او پر ورحميږې.

## ۷۲- څوک چي په چا اوبه وڅښي. او يا يې د څښولو اراده وکړي. هغه ته دعا

۱۸۳- «اللَّهُمَّ أَطْعِمْ مَنْ أَطْعَمَنِي، وَاسْقِ مَنْ سَقَانِي»[(٢)].

۞ الهي! ته خواړه ورکړه هغه چا ته چي ما ته يې خواړه را کړه، او خړوب کړه* هغه څوک چي زه يې خړوب کړم.

## ۷۳- د چا په کور کي د روژه مات په وخت کي دعا

۱۸٤- «أَفْطَرَ عِنْدَكُمْ الصَّائِمُونَ، وَأَكَلَ طَعَامَكُمْ الأَبْرَارُ،

---

(١) مسلم ٣/١٦١٥.

(٢) مسلم ٣/١٢٦.

وَصَلَّتْ عَلَيْكُمْ الْمَلاَئِكَةُ»[1].

۞ تاسو کره دي روژه دار* روژه ماته کړي، او ستا ډوډۍ دي نیکان* وخوري، او ملائکې دي درته دعا وکړي.

## ۷۴- د روژه دار* دعا چې کله خواړه حاضر شي او روژه ماته نکړي

۱۸۵- (پیغمبر ﷺ فرمایي) کله چې له تاسو نه څوک دعوت شي، نو دعوت دي قبول کړي، که يې روژه وه، نو دعا دي (ورته) وکړي، او که يې روژه نه وه، نو ډوډۍ دي وخوري[2].

## ۷۵- کله چې روژه دار ته څوک بکنځل* وکړي، نو دی به داسې ورته وايي

۱۸۶- زه روژه یم، زه روژه یم[3].

## ۷۶- د اولنۍ میوې لیدو دعا

۱۸۷- «اللَّهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِي ثَمَرِنَا، وَبَارِكْ لَنَا فِي مَدِينَتِنَا،

---

(۱) ابو داود ۳/۳۶۷، ابن ماجه ۱/۵۵٦، نسائي په «عمل اليوم والليلة» ۲۹٦-۲۹۸ نمبر حديث کې روایت کړیدی، او دا خبره يې په صراحت کړیده چې پیغمبر ﷺ به کله د کوم کوروال سره روژه ماته کړه دا به يې ویل. او الباني په صحيح ابي داود ۲/۷۳۰ کې هغه صحيح بللی دی.

(۲) مسلم ۲/۱۰۵۴.

(۳) بخاري (فتح الباري ۴/۱۰۳)، مسلم ۲/۸۰٦.

وَبَارِكْ لَنَا فِي صَاعِنَا، وَبَارِكْ لَنَا فِي مُدِّنَا»[1].

۞ الهي! زمونږ په ميوه كې راته بركت واچوې، او زمونږ په ښار كې راته بركت واچوې، او زمونږ په «مُدّ» كې راته بركت واچوې، او زمونږ په «صاع»[2] كې راته بركت واچوې.

## ۷۷- د ترَچيدلو* دعا

۱۸۸- (پيغمبر ﷺ فرمايي) كله چې له تاسو نه څوک وترَچيږي*، نو ودې وايي: «الْحَمْدُ لِلَّه» يعني: ټوله غوره ستاينه الله لره ده، او هغه بل كس او ملګرى به ورته وايي: «يَرْحَمُكَ اللَّهُ» يعني: الله ﷻ دې پر تا رحم وكړي، چې كله يې «يرحمک الله» وويل، نو (هغه بل به ورتـه) وايي: «يَهْدِيكُمُ اللَّهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ»[3] يعني: الله دې تا ته هدايت وكړي، او الله دې ستا احوال او كار سم كړي.

## ۷۸- كله چې كافر وترَچيږي داسې به ورته وايي

۱۸۹- «يَهْدِيكُمُ اللَّهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ»[4].

۞ الله دې تاسو ته هدايت وكړي، او الله دې ستاسو احوال او

(۱) مسلم ۲/ ۱۰۰۰.
(۲) صاع د وزن يوه پيمانه ده، او مُد يې څلورمه حصه ده.(ژباړن)
(۳) بخاري ۷/ ۱۲۵.
(٤) ترمذي ٥/ ۸۲، احمد ۴/ ۴۰۰، ابو داود ۴/ ۳۰۸، صحيح الترمذي ۲/ ۳۵۴.

کار سم کړي.

## ۷۹- واده کونکي ته دعا

۱۹۰- «بَارَكَ اللَّهُ لَكَ، وَبَارَكَ عَلَيْكَ، وَجَمَعَ بَيْنَكُمَا فِي خَيْرٍ»[1].

۞ الله دي تا لره برکت درکړي، او پر تا دي برکت وکړي، او تاسو دواړه دي په خير سره يو ځای کړي.

## ۸۰- د واده کولو او سورلی* اخيستلو دعا

۱۹۱- «إِذَا تَــزَوَّجَ أَحَدُكُمْ امْرَأَةً، أَوْ إِذا اشْتَرَى خَادِماً فَلْيَقُلْ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَهَا، وَخَيْرَ مَا جَبَلْتَهَا عَلَيْه، وَأَعُوذُ بِــكَ مِــنْ شَرِّهَا، وَمِنْ شَرِّ مَا جَبَلْتَهَا عَلَيْه، وَإِذَا اشْتَرَى بَعِيراً فَلْيَأْخُذْ بِذِرْوَةِ سَنَامِه وَلْيَقُلْ: مِثْلَ ذَلِكَ»[2].

۞ (پيغمبر ﷺ فرمايي) کله چي له تاسو نه څوک له يوې ښځي سره واده وکړي، او يا مريی* واخلي، نو داسي به وايي: الهي! زه له تا نه ددې د خــير سوال کوم، او د هغه څه د خير سوال درنه کوم په کوم چي تا هغه پيدا کړيده، او پناه غواړم په تا سره ددې له شر نه، او له هغه شر نه په کوم چي تا هغه پيدا کړيده.

---

(۱) بیله نسائي نه نورو اصحاب السنن روایت کړیدی، صحیح الترمذي ۱/۳۱٦.

(۲) ابو داود ۲/۲۴۸، ابن ماجه ۱/٦۱۷، صحیح ابن ماجه ۱/۳۲۴.

او چـــي كلـــه اوښ واخـــلي نو د بوک* څوکه به يې نيسي او مخکينی دعا به وکړي.

## ٨١- خپلي ښځي سره کوروالی* نه مخکي دعا

١٩٢- «بِاسْـــمِ اللَّـــهِ، اللَّهُـــمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطَانَ، وَجَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا»(١).

۞ د الله پـــه نوم (کوروالی* کوم)، الهي! ته مو له شيطان نه لېري کـــړې، او شيطان (زمونږ) له هغه (اولاد) نه لېري کړې چي تا مونږ ته راکړيدی.

## ٨٢- د قهر او غوسي په وخت دعا

١٩٣- «أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ»(٢).

۞ زه په الله سره له رټل شوي شيطان نه پناه غواړم.

## ٨٣- د مصيبت زده ليدو په وخت دعا

١٩٤- «الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي عَافَانِي مِمَّا ابْتَلاَكَ بِهِ، وَفَضَّلَنِي عَلَى كَثِيرٍ مِمَّنْ خَلَقَ تَفْضِيلاً»(٣).

۞ ټولـــه غوره ستاينه هغه الله لره ده چي زه يې ساتلی يم له هغه

---

(١) بخاري ١٤١/٦، مسلم ١٠٢٨/٢.

(٢) بخاري ٩٩/٧، مسلم ٢٠١٥/٤.

(٣) ترمذي ٤٩٣/٥، ٤٩٤/٥، صحيح الترمذي ١٥٣/٣.

څه نه چي ته يې پرې اخته کړي يې، او ما ته يې پر خپلو ډېرو مخلوقاتو فضيلت او غوره والی راکړيدی.

## ۸۴- د مجلس دعا

۱۹۵- عَـــنْ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ يُعَدُّ لِرَسُولِ اللَّهِ ﷺ فِي الْمَجْلِسِ الْوَاحِدِ مِائَةُ مَرَّةٍ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَقُومَ «رَبِّ اغْفِرْ لِي، وَتُبْ عَلَيَّ، إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الْغَفُورُ»(۱).

❁ له ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی چي وايي: پيغمبر ﷺ بـــه پـــه يـــوه مجلس کي په شمار سل ځلي دا (دعا) ويله: ای ځما پروردګاره! بخښنه راته وکړې، او توبه مي قبوله کړې، په رښتيا سره چي ته ښه توبه قبلونکی، ډېر بخښونکی يې.

## ۸۵- د مجلس کفاره*

۱۹۶- «سُـــبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ، أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ، أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ»(۲).

---

(۱) تـــرمذي او نورو روايت کړيدی، صحيح الترمذي ۱۵۳/۳، صحيح ابن ماجه ۳۲۱/۲ او الفاظ د ترمذي دي.

(۲) اصـــحاب السنن روايت کړيدی، صحيح الترمذي ۱۵۳/۳، او له عائشه رضي الله عنها نه روايت دی چـــي وايي: پيغمبر ﷺ کله چي به په يو مجلس کي کښيناسته، او يا قرآن به يې لوسته، او يا لمونځ به يې کاوه، نو د هغه نه وروسته به يې (هميشه) دغه (پورتني) کلمات لوستل.. باقي حديث. نســـائي په «عمل اليوم والليلة» ۳۰۸ نمبر حديث کي، احمد ۷۷/٦ روايت کړيدی، او دکتور =

۞ الهـــي! پـــه پاکۍ سره يادوو تا، او پوره ستاينه کوو ستا، زه شاهدي* ورکوم، چې بيله تا نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، زه له تا نه بخښنه غواړم، او تا ته توبه کوم.

## ٨٦- څوک چې چا ته ووايي: «غفر الله لک»[١] نو هغه ته به داسي وايي

١٩٧ – «وَلَكَ»[٢].

۞ او تا ته دي هم (الله بخښنه وکړي).

## ٨٧- څوک چې له تا سره ښه وکړي، هغه ته دعا

١٩٩ – «جَزَاكَ اللهُ خَيراً»[٣].

۞ الله دي تا لره خير (او نيک اجر) درکړي.

## ٨٨- په څه چې د دجال (له فتنې) نه ځان ساتلی شي

١٩٩ - (پيغمبر ﷺ فرمايي) چا چې د کهف د سورت اولني لس آياتونه ياد کړل، له دجال نه به وژغورل* شي[٤].

---

فاروق حماده د «عمل اليوم والليلة» په تحقيق ص٢٧٣ کي هغه صحيح بللی دی.

(١) ترجمه: الله دي تا ته بخښنه وکړي.(ژباړن)

(٢) احمـــد ٥/٨٢، نسائي «عمل اليوم والليلة» ص٢١٨، ٤٢١ نمبر حديث، د دکتور فاروق حماده تحقيق کي روايت کړيدی.

(٣) ترمذي ٢٠٣٥ نمبر حديث، صحيح الجامع ٦٢٤٤، صحيح الترمذي ٢/٢٠٠.

(٤) مســـلم ١/٥٥٥، او پـــه بـــل روايت ١/٥٥٦ کي د کهف دسورت آخري (لس) آيتونه نيودل شويدي.

او (همدارنګه) په هر لمانځه کي د وروستنۍ ناستي د «التحيات» نه وروسته په الله سره د دجال له فتنې نه پناه غوښتل[(۱)].

**۸۹- څوک چي چا ته ووايي: «إِنِّي أُحِبُّكَ فِي اللهِ»[(۲)]، هغه ته به داسي وايي**

۲۰۰- «أَحَبَّكَ الَّذِي أَحْبَبْتَنِي لَهُ»[(۳)].

۞ هغــــه ذات دي در سره محبت وکړي چي تا د هغه لپاره زما سره محبت کړيدی.

**۹۰- څوک چي خپل مال تا ته وړاندي کړي، هغه ته دعا**

۲۰۱- «بَارَكَ اللَّهُ لَكَ فِي أَهْلِكَ وَمَالِكَ»[(٤)].

۞ الله دي تاته ستا په عيال او مال کي برکت واچوي.

**۹۱- د قرض د اداء کولو په وخت قرض ورکونکي ته دعا**

۲۰۲- «بَــــارَكَ اللَّـــــهُ لَكَ فِي أَهْلِكَ وَمَالِكَ، إِنَّمَا جَزَاءُ السَّلَفِ الْحَمْدُ وَالأَدَاءُ»[(٥)].

۞ الله دي تاته ستا په عيال او مال کي برکت واچوي، په رښتيا

---

(۱) ددي کتاب ۵۵ نمبر حديث، او ۵٦ نمبر حديث دي وکتل شي.

(۲) يعني: زه درسره د الله لپاره محبت لرم.(ژباړن)

(۳) ابو داود ۳۳۳/۴، او الباني په صحيح سنن ابي داود ۹٦٥/۳ کي د هغه اسناد حَسَن بللی دی.

(٤) بخاري (فتح الباري ۸۸/۴).

(٥) نسائي «عمل اليوم والليلة» ص۳۰۰، ابن ماجه ۸۰۹/۲، صحيح ابن ماجه ۵۵/۲.

سره چي د قرض بدله په ستاينه او ادراينه سره وي.

## ٩٢- له شرک نه د ويرې* دعا

٢٠٣- «اللَّهُـمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ أَنْ أُشْرِكَ بِكَ وَأَنَا أَعْلَمُ، وَأَسْتَغْفِرُكَ لِمَا لاَ أَعْلَمُ»[١].

❁ الهـي! زه په تا سره پناه غوارم لدينه چي زه په پوهه ستا سره شريک جوړ کړم، او بخښنه غوارم له هغه (شرک) نه چي زه پرې نه پوهيږم.

## ٩٣- هغه چا ته دعا چي تا ته ووايي: «بارَكَ اللهُ فِيكَ»[٢]

٢٠٤- «وَفِيْكَ بَارِكَ اللهُ»[٣].

❁ او الله دي په تا کې هم برکت واچوي.

## ٩٤- د بد شګومې* بد ګڼلو دعا

٢٠٥- «اللَّهُمَّ لاَ طَيْرَ إِلاَّ طَيْرُك، وَلاَ خَيْرَ إِلاَّ خَيْرُك، وَلاَ إِلَه غَيْرُك»[٤].

---

(١) احمـد ٤٠٣/٤ او نورو روايت کړيدی، صحيح الجامع ٢٣٣/٣، صحيح الترغيب والترهيب د الباني ليکنه ١٩/١.

(٢) يعني: الله دي په تا کي برکت واچوي.(ژباړن)

(٣) ابـن السـني ص١٣٨، ٢٧٨ نمـبر حديث، الوابل الصيب د ابن القيم ليکنه ص٣٠٤، د بشير محمد عيون تحقيق.

(٤) احمـد ٢٢٠/٢، ابن السني ٢٩٢ نمبر حديث، او الباني په الأحاديث الصحيحة ٥٤/٣، ١٠٦٥ =

۞ الهي! بد شگومي* يوازي ستا لخوا نه (او ستا په حکم سره) ده، او خیر تول ستا لخوا نه دی، او بیله تا نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته.

## ۹۵- د سپرېدو دعا

۲۰٦- «بسم الله، الحمدُ لله ﴿سُبْحانَ الّذي سَخَّرَ لَنا هَذَا وَمَـــا كُنَّا لَهُ مُقْرِنينَ وَإِنَّا إِلَى رَبِّنا لَمُنقَلِبُونَ﴾ الحَمدُ لله، الحمدُ لله، الحمـــدُ لله، اللَّهُ أَكبَرُ، اللَّهُ أَكبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ، سُبْحَانَكَ اللهمّ، إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسَي فَاغْفِرْ لِي فِإِنَّهُ لاَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلاّ أَنْتَ»[(١)].

۞ د الله په نوم سره (سپرېږم)، الله لره ټوله غوره ستاینه ده، پاک دی هغـــه ذات چې مونږ ته یې دا (سپرلۍ) تابع کړیده، او مونږ د هغه مهـــاروونکي* نـــه یو، او بیشکه مونږ خپل پروردگار ته هرومرو بیرته تلونکي یو، الله لره ټوله غوره ستاینه ده، الله لره ټوله غوره ستاینه ده، الله لره ټولـــه غوره ستاینه ده، الله ډیر لوی دی، الله ډیر لوی دی، الله ډیر لوی دی، په پاکي سره یادوو تا اې الله، ما پر خپل ځان زیاتی* کړیدی،

=

نمبر حدیث کي هغه صحیح بللی دی.

او نـــیک فـــالي د پیغمبر ﷺ خوښیدله، او چې کله به یې له کوم سړي نه ښه خبره واوریده، او خوښـــه بـــه یې شوه، نو داسي به یې ویل: ستا نیک فال مو ستا له خولې نه واخیست. ابو داود، احمـــد، او البانی په الأحادیث الصحیحة ۲/۳٦۳ کي هغه د ابو الشیخ په حواله په «أخلاق النبي ﷺ» ص۲۷۰ کي صحیح بللی دی.

(١) ابو داود ۳/۳۴، ترمذي ۵/۵۰۱، صحیح الترمذي ۳/۱۵٦.

نــو ماته بخښنه وکړې، چې په ربنتیا سره بیله تا نه بل څوک ګناهونه نشي بخښلای*.

## ٩٦- د سفر دعا

٢٠٧-«اللَّـــهُ أَكْـــبَرُ، اللَّـــهُ أَكْـــبَرُ، اللَّـــهُ أَكْـــبَرُ، ﴿سُـــبْحانَ الَّذي سَخَّرَ لَنا هَذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ وَإِنَّا إِلَى رَبِّنَا لَمُنقَلِبُونَ﴾ اللَّهُمَّ إِنَّا نَسْأَلُكَ فِي سَفَرِنَا هَذَا الْبِرَّ وَالتَّقْوَى، وَمِنْ الْعَمَلِ مَا تَرْضَى، اللَّهُمَّ هَوِّنْ عَلَيْنَا سَفَرَنَا هَذَا، وَاطْوِ عَنَّا بُعْدَهُ، اللَّهُمَّ أَنْتَ الصَّاحِبُ فِي السَّفَرِ، وَالْخَلِيفَةُ فِي الأَهْلِ، اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ وَعْثَاءِ السَّفَرِ، وَكَآبَةِ الْمَنْظَرِ، وَسُوءِ الْمُنْقَلَبِ فِي الْمَالِ وَالأَهْلِ» [وَإِذَا رَجَعَ قَالَهُنَّ وَزَادَ فِيهِنَّ:] «آيِبُونَ، تَائِبُونَ، عَابِدُونَ، لِرَبِّنَا حَامِدُونَ»[(١)].

۞ الله ډیر لوی دی، الله ډیر لوی دی، الله ډیر لوی دی، الله لره ټولـــه غوره ستاینه ده، پاک دی هغه ذات چې مونږ ته یې دا (سورلی) تابع کړیده، او مونږ د هغه مهاروونکي* نه یو، الهي! مونږ پدې سفر کې لـــه تا نه د نیکۍ او پرهیزګارۍ، او دداسې عمل سوال کوو چې تا ته خوښ وي، الهي! ته مونږ ته دا سفر آسانه کړې، او اوږدوالی یې راته لنډ

---

(١) مسلم ٢/٩٩٨.

کړې، الهي! ته په سفر کي ملګرى، او په کور کي سرپرست يې، الهي! زه په تا سره پناه غواړم د سفر د سختۍ نه، او له خوار حالت نه، او مال او عيال ته له ناوړه* بيرته ستنيدو* نه.

او چي کله له سفر نه بيرته راستنيدونکى وي نو همدا دعا به وايي، او ورسره به دا هم وايي: بيرته راتلونکي، توبه ايستونکي، عبادت کونکي، د خپل پروردګار ستايونکي* يو.

## ۹۷- کلي يا ښار ته ننوتلو دعا

۲۰۸- «اللهمّ ربَّ السموات السبعِ وما أَظْلَلْنَ، وربَّ الأَرَضِينَ السَّبعِ وما أَقْلَلْنَ، وربَّ الشَياطينِ وما أَضْلَلْنَ، وربَّ الرِّياحِ وما ذَرَيْنَ، أَسأَلُكَ خيرَ هذه القَرْيةِ، وخيرَ أهلِها، وخيرَ ما فيها، وأَعُوذُ بِكَ مِنْ شرِّها، وشرِّ أَهْلِها، وشرِّ ما فيها»[1].

❁ الهي! د اوو آسمانونو او د هغو تر سيوري* لاندي (مخلوقاتو) پروردګاره!، او د اوو ځمکو او د هغو برسيره (مخلوقاتو) پروردګاره! او د شيطانانو او په هغوى سره ګمراه شويو (مخلوقاتو) پروردګاره! او د بادونو* او په هغوى سره د الوُزَوَل شويو (مخلوقاتو) پروردګاره! زه

---

(۱) حاکم ۲/۱۰۰، او هغه يې صحيح بللى دى، او ذهبي ورسره موافقه کړيده، ابن السني ۵۲۴ نمبر حديث، او حافظ د الاذکار په تخريج ۵/۱۵۴ کي هغه حَسَن بللى دى، او ابن باز وايي: نسائي هغه په حَسَن سند سره روايت کړيدى، تحفة الاخيار ص۳۷.

ددې کــلي خیر، او د هغه د اوسیدونکو خیر، او د هغه څه خیر درنه غواړم کوم چي په هغه کي دي، او په تا سره پناه غواړم د هغه له شر نه، او د هغه د اوسیدونکو له شر نه، او د هغه څه له شر نه کوم چي په هغه کي دي.

## ۹۸- بازار ته ننوتلو دعا

۲۰۹- «لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْـــدُ، يُحْيِي وَيُمِيتُ، وَهُوَ حَيٌّ لاَ يَمُوتُ، بِيَدِهِ الْخَيْرُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ»[۱].

۞ بیله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، هغه یو دی، شریک نلري، هغه لره ټولواکي او پوره غوره ستاینه ده، ژوند ورکوي، او مرګ راولي، او هغه (همیشه) ژوندی دی، مرګ نلري، ټول خیر دده په لاس کي دی، او هغه پر هر څه قادر دی.

## ۹۹- د سپرلۍ غورځیدو په وخت دعا

۲۱۰- «بِسمِ اللَّهِ»[۲].

۞ د الله په نوم سره.

---

(۱) تـــرمذي ۲۹۱/۵، حاکم ۵۳۸/۱، او الباني په صحیح ابن ماجه ۱۲/۲، او په صحیح الترمذي ۱۵۲/۳ کي هغه حَسَن بللی دی.

(۲) ابو داود ۲۹٦/۴، او الباني په صحیح ابي داود ۹۴۱/۳ کي هغه صحیح بللی دی.

## ۱۰۰- د مسافر دعا مُقيم* ته

۲۱۱- «أَسْتَوْدِعُكُمُ اللَّهَ الَّذِي لاَ تَضِيعُ وَدَائِعُهُ»(۱).

۞ هغـه الله تـه دي سپارم، چې هغه ته سپارل شوي نه ضائع* کيږي.

## ۱۰۱- د مقيم* دعا مسافر ته

۲۱۲-۱- «اسْتَوْدِعْ اللَّهَ دِينَكَ وَأَمَانَتَكَ وَخَوَاتِيمَ عَمَلِكَ»(۲).

۞ زه ستا دين، او ستا امانت، او ستا د کارونو انجام* الله ته سپارم.

۲۱۳-۲- «زَوَّدَكَ اللَّهُ التَّقْوَى، وَغَفَرَ ذَنْبَكَ، وَيَسَّرَ لَكَ الْخَيْرَ حَيْثُ مَا كُنْتَ»(۳).

۞ الله دي در ته د پرهيزګارۍ توښه درکړي، او الله دي ستا ګناه وبخښي، او چيرته چي يې (الله دي) درته نيکي آسانه کړي.

## ۱۰۲- په سفر کي تکبير او تسبيح

۲۱۴- جابر ﷺ وايي: کله چي به پر لوړه ختو نو «اللَّهُ أَكْبَرُ»

---

(۱) احمد ۴۰۳/۲، ابن ماجه ۹۴۳/۲، صحيح ابن ماجه ۱۳۳/۲.
(۲) احمد ۷/۲، ترمذي ۴۹۹/۵، صحيح الترمذي ۱۵۵/۲.
(۳) ترمذي، صحيح الترمذي ۱۵۵/۳.

به مو ویل، او کله چي به ښکته کېدو نو «سُبْحَانَ اللهِ» به مو ویل[1].

## ۱۰۳- د سهار* په وخت د مسافر دعا

۲۱۵- «سَمِعَ سَامِعٌ بِحَمْدِ اللَّهِ وَحُسْنِ بَلَائِهِ عَلَيْنَا، رَبَّنَا صَاحِبْنَا، وَأَفْضِلْ عَلَيْنَا، عَائِذاً بِاللَّهِ مِنْ النَّارِ»[2].

۞ الله لره (زمونږ) پر ستاینه، او پر مونږ باندي د هغه د ښو نعمتونو یو شاهد شاهدي ورکړه، اې پروردګاره! زمونږ مل* اوسه، او خپل (بې شــماره) نعمتونه (په خپل فضل سره) مونږ ته راکړه، پناه غوارم[3] په الله سره (د دوږخ ) له اور نه.

## ۱۰۴- په سفر یا پرته له سفر نه په یو ځای کي د کوزیدلو او ودریدلو دعا

۲۱۶- «أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ»[4].

---

(۱) بخاري (فتح الباري ۱۵۳/۶).

(۲) مسـلم ۲۰۷۶/۴، او د «سـمِعَ سامِعٌ» معنی داده: شاهدي ورکړه شاهدي ورکونکي پر ستاینه زمونـــږ الله لره، او دده پر ښو نعمتونو او ابتلا باندي، او د «سَمَّعَ سامِعٌ» (د روایت) معنی داده: اوریدونکـــي زمـــا دا خبره نورو ته ورسوله، او دا يې څکه وویل تر څو د سهار په وخت ذکر او دعـــا کولو ته اشاره وکړي، او «رَبَّنا صَاحِبْنا، وَأَفْضِلْ عَلَيْنَا» معنی داده: مونږ (په خپل) حفظ او امـــان کي ونیسه، او ساتنه مو وکړه، او خپل بې شماره نعمتونه په خپل فضل سره مونږ ته راکړه، او له مونږ نه هر رنګه تکلیف او ضرر لیري کړه. شرح النووي ۳۹/۱۷.

(۳) حال په معنی د مصدر دی، او (اعوذ) مقدر دی.(ژباړن)

(٤) مسلم ۲۰۸۰/۴.

۞ د الله پــــه بشپړ* کلام سره د هغه څه له شر نه پناه غواړم چې (الله) پیدا کړیدي.

## ۱۰۵- د سفر نه د ستنیدو دعا

۲۱۷- يُكَبِّرُ عَلى كُلِّ شَرَف ثَلاَث تَكْبِيرات، ثُمَّ يَقُولُ: «لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَــــى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، آيِبُونَ، تَائِبُونَ، عَابِدُونَ، لِرَبِّنَا حَامِدُونَ، صَدَقَ اللَّهُ وَعْدَهُ، وَنَصَرَ عَبْدَهُ، وَهَزَمَ الأَحْزَابَ وَحْدَهُ»(۱).

۞ پــــر هر لوړ* ځای به درې ځلي «الله اکبر» وايې، او بيا به دا دعــــا کــــوي: بيله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، هغه يو دی، شريک نلري، هغه لره ټولواکي او پوره غوره ستاينه ده، او هغه پر هر څــــه قادر* دی، مونږ بيرته راتلونکي، توبه ايستونکي، عبادت کونکي، يوازي د خپل پروردګار ستايونکي* يو، الله خپله وعده رښتونې* کړه، او د خپل بنده (محمد ﷺ) مرسته يې وکړه، او په يوازي* يې (د کفارو) ډلو ماتې ورکړه.

## ۱۰۶- د خوشحالۍ او يا خواشينۍ کار پيښيدو په وخت کي دعا

۲۱۸- كَـــانَ ﷺ إِذَا أَتَـــاهُ الأَمرُ يَسُرُّهُ قَالَ: «الْحَمْدُ لِلَّه

(۱) پیغمبر ﷺ به چي کله له کومي غزا او يا حج نه بيرته راغی نو دا اذکار به يې ويل.
بخاري ۱٦۳/۷، مسلم ۹۸۰/۲.

الَّـــذي بنعْمَـــته تَتمُّ الصَّالحَاتُ»، وَإِذَا أَتاهُ الأَمْرُ يَكْرَهُهُ قَالَ: «الْحَمْدُ لَلَّه عَلَى كُلِّ حَال»[١].

ﷺ پيغمبر ﷺ ته چي به كله خوشحالونكى كار مخې ته راغى، نو داسي به يې ويل: **تو**له غوره ستاينه هغه الله لره ده چي په نعمت سره يې نيک كارونه سر ته رسيږي.

او چـــي كله به ناخوښه كار ورته پيښ شو، نو داسي به يې ويل: **تو**له غوره ستاينه الله لره ده په هر حال كي.

## ١٠٧- پر پيغمبر ﷺ د درود ويلو فضيلت

٢١٩-١- قـــال ﷺ: «مَنْ صَلَّى عَلَيَّ صَلاَةً صَلَّى اللهُ عَلَيْه بِهَا عَشْراً»[٢].

ﷺ پيغمبر ﷺ فرمايي: څوک چي پر ما يو درود ووايي، نو الله به پر هغه لس ځلي رحمت وليږي.

٢٢٠-٢- وقـــال ﷺ: «لاَ تَجْعَلُوا قَبْرِي عِيداً، وصَلُّوا عَلَيَّ، فَإِنَّ صَلاَتَكُمْ تَبْلُغُني حَيْثُ كُنْتُمْ»[٣].

---

(١) ابـــن السني په «عمل اليوم والليلة» ٤٩٩/١ كي هغه روايت كړى، او صحيح بللى دى، او الباني هم په صحيح الجامع ٢٠١/٤ كي هغه صحيح بللى دى.

(٢) مسلم ٢٨٨/١.

(٣) ابـــو داود ٢١٨/٢، احمد ٣٦٧/٢، او الباني په صحيح ابي داود ٣٨٣/٢ كي هغه صحيح بللى دى.

۞ او ﷺ فرمايي: زما قبر نه ميله مه جوړوى، او پر ما درود وواېي، ځکه ستاسو درود -هر چيرې چې ياست- ما ته رسيږي.

٢٢١-٣- وقال ﷺ: «الْبَخِيلُ مَنْ ذُكِرْتُ عِنْدَهُ فَلَمْ يُصَلِّ عَلَيَّ»(١).

۞ او ﷺ فرمايي: بخيل* هغه دى، چې زه دده په وړاندې ياد شم، او پر ما درود ونه وايي.

٢٢٢-٤- وقال ﷺ: «إِنَّ لِلَّهِ مَلاَئِكَةً فِي الأَرْضِ سَيَّاحِينَ يُبَلِّغُونِي مِنْ أُمَّتِي السَّلاَمَ»(٢).

۞ او ﷺ فرمايي: الله لره په ځمکه کې ګرځندويه* فرښتې* دي، چې زما د امت سلام ما ته رسوي.

٢٢٣-٥- وقال ﷺ: «مَا مِنْ أَحَدٍ يُسَلِّمُ عَلَيَّ إِلاَّ رَدَّ اللَّهُ عَلَيَّ رُوحِي حَتَّى أَرُدَّ عَلَيْهِ السَّلاَمَ»(٣).

۞ او فـــرمايي: هيڅوک پر ما سلام نه کوي، مګر الله ﷻ زما روح ما ته بيرته راکړي، تر څو د هغه د سلام جواب* ورکړم.

---

(١) ترمذي ٥٥١/٥ او نورو روايت کړيدى، صحيح الجامع ٢٥/٣ صحيح الترمذي ١٧٧/٣.

(٢) نسائي، حاکم ٤٢١/٢، او الباني په صحيح النسائي ٢٧٤/١ کې هغه صحيح بللى دى.

(٣) ابـــو داود ٢٠٤١ نمـــبر حديث، او الباني په صحيح ابي داود ٣٨٣/١ کې هغه صحيح بللى دى.

## ١٠٨- سلام خپرول*

٢٢٤-١- قال ﷺ: «لاَ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ حَتَّى تُؤْمِنُوا، وَلاَ تُؤْمِنُوا حَتَّى تَحَابُّوا، أَوَ لاَ أَدُلُّكُمْ عَلَى شَيْءٍ إِذَا فَعَلْتُمُوهُ تَحَابَبْتُمْ، أَفْشُوا السَّلاَمَ بَيْنَكُمْ»(١).

۞ پيغمبر ﷺ فرمايي: جنت ته نشی تلّلای تر څو مومنان نه شی، او مومنان نشی کيدلای تر څو خپل مينځونو کي مينه محبت ونلری، نو زه تاسو ته داسي يو شی* ونه ښايم چي که وکړی، په خپلو مينځونو کي به مو مينه محبت پيدا شي؟ خپلو مينځونو کي سلام خپور کړی(٢).

٢٢٥-٢- (قال ﷺ): «ثَلاَثٌ مَنْ جَمَعَهُنَّ فَقَدْ جَمَعَ الإِيمَانَ: الإِنْصَافُ مِنْ نَفْسِكَ، وَبَذْلُ السَّلاَمِ لِلْعَالَمِ، وَالإِنْفَاقُ مِنَ الإِقْتَارِ»(٣).

۞ (پيغمبر ﷺ فرمايي): دري داسې (صفتونه) دي، چا چي هغه ټولـه ولرل نو پوره ايمان يې حاصل کړ (هغه دادي): په خپل ځان کي انصاف لرل، په ټولو (خلګو) سلام کول، او د بې وزلتوب* په حالت کي مصرف کول.

---

(١) مسلم ٧۴/١ او نورو روايت کړيدی.

(٢) يعني: يو په بل باندي هميشه سلام کوی.(ژباړن)

(٣) بخاري (فتح الباري ٨٢/١) له عمار ؓ نه موقوف او معلق روايت کړيدی.

۲۲۶- وعَنْ عَبْد اللَّه بْنِ عُمَر رضيَ اللهُ عنهما: أَنَّ رَجُلاً سَأَلَ النَّبِيَّ ﷺ أَيُّ الإِسْلاَمِ خَيْرٌ قَالَ: «تُطْعِمُ الطَّعَامَ، وَتَقْرَأُ السَّلاَمَ عَلَى مَنْ عَرَفْتَ وَمَنْ لَمْ تَعْرِفْ»[۱].

۞ او د عبد الله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی: چي يوه سړي له پيغمبر ﷺ نه پوښتنه* وکړه چي کوم اسلام غوره دی؟[۲] (پيغمبر ﷺ) وفرمايل: دا چي (د الله په لار کي) ډوډی ورکړې، او سلام وکړې پر هغه چا چي پېژنې يې او که يې نه پېژنې.

## ۱۰۹- د کافر د سلام جواب به څنګه ورکوي

۲۲۷- «إِذَا سَلَّمَ عَلَيْكُمْ أَهْلُ الْكِتَابِ فَقُولُوا: وَعَلَيْكُمْ»[۳].

۞ کله چي اهل کتاب (يهود او نصارى) په تاسو سلام وکړي، نو تاسو (په جواب کي) ورته وواياست: (وعليكم)، يعني: او په تاسو هم.

## ۱۱۰- د چرګ* د آذان، او د خره د هنګاري* په وخت دعا

۲۲۸- «إِذَا سَمِعْتُمْ صِيَاحَ الدِّيَكَةِ فَاسْأَلُوا اللَّهَ مِنْ فَضْلِهِ؛ فَإِنَّهَا رَأَتْ مَلَكاً، وَإِذَا سَمِعْتُمْ نَهِيقَ الْحِمَارِ فَتَعَوَّذُوا بِاللَّهِ مِنَ

---

(۱) بخاري (فتح الباري ۱/۵۵)، مسلم ۱/۶۵.
(۲) يعني: په اسلام کي کوم کار له نورو نه غوره دی.(ژباړن)
(۳) بخاري (فتح الباري ۱۱/۴۲)، مسلم ۴/۱۷۰۵.

الشَّيْطَان؛ فَإِنَّهُ رَأَى شَيْطَاناً»[(١)].

۞ (پیغمبر ﷺ فرمايي) کله چې د چرګ* آذان واورى، نو د الله د هغه د فضل سوال وکړى، ځکه هغه (د آذان په وخت) ملائکه* ليدلې وي، او چې کله د خره هنګار واورى، نو په الله سره له شيطان نه پناه وغواړى، ځکه چې هغه (د هنګاري په وخت) شيطان ليدلى وي.

## ١١١- په شپه کې د سپيو د غپلو اوريدو په وخت دعا

٢٢٩- «إِذَا سَمِعْتُمْ نُبَاحَ الْكِلاَبِ وَنَهِيقَ الْحَمِيرِ بِاللَّيْلِ فَتَعَوَّذُوا بِاللَّهِ مِنْهُنَّ؛ فَإِنَّهُنَّ يَرَيْنَ مَا لاَ تَرَوْنَ»[(٢)].

۞ (پیغمبر ﷺ فرمايي) کله چې په شپه کې د سپيو غپل، او د خرو هنګارى واورى، نو په الله سره له هغو نه پناه وغواړى، ځکه هغوى داسې څه ويني چې تاسو يې نه وينى.

## ١١٢- څوک چې دي بکنځلى وي هغه ته دعا

٢٣٠- قال ﷺ: «اللَّهُمَّ فَأَيُّمَا مُؤْمِنٍ سَبَبْتُهُ فَاجْعَلْ ذَلِكَ لَهُ قُرْبَةً إِلَيْكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»[(٣)].

---

(١) بخاري (فتح الباري ٦/٣٥٠)، مسلم ٤/٢٠٩٢.

(٢) ابو داود ٤/٣٢٧، احمد ٣/٣٠٦، او الباني په صحيح ابي داود ٣/٩٦١ کې هغه صحيح بللى دى.

(٣) بخاري (فتح الباري ١١/١٧١)، مسلم ٤/٢٠٠٧، او د مسلم الفاظ دادي: «فاجعلها له زكاة ورحمة» يعني: هغه دده لپاره د پاکوالي او رحمت سبب وګرځوې.

۞ الهـــي! کوم مومن ته چي ما کنځلي کړي دي، نو هغه ورته د قيامت په ورځ و تاته د نژديکت سبب وګرځوې.

## ۱۱۳- د بل مسلمان ستايلو په وخت به داسي وايي

۲۳۱- قال ﷺ: «إِذَا كَانَ أَحَدُكُمْ مَادِحاً صَاحِبَهُ لاَ مَحَالَةَ فَلْيَقُلْ: أَحْسِبُ فُلاَناً -وَاللَّهُ حَسِيبُهُ وَلاَ أُزَكِّي عَلَى اللَّهِ أَحَداً-، أَحْسِبُهُ -إِنْ كَانَ يَعْلَمُ ذَاكَ- كَذَا وَكَذَا»[1].

۞ (پيغمبر ﷺ فرمايي) کله چي له تاسو نه څوک د خپل ملګري هرومــرو* صــفت کول غواړي، نو داسي دي ووايي: زه (په فلاني) همداسي ګمان کوم، او الله ﷻ د هغه په حال ښه خبر دی[2]، او د الله په وړاندي د هيچا تزکيه* او د هغه په سپيڅلتيا* حکم نه کوم[3]، زه په هغه داسي ګمان کوم، (دا په هغه وخت کي) چي د هغه نه خبر وي.

## ۱۱۴- کله چي د يو مسلمان صفت وشي، نو هغه به داسي وايي

۲۳۲- «اللَّهُـــمَّ لاَ تُؤَاخِذْنِي بِمَا يَقُولُونَ، وَاغْفِرْ لِي مَا لاَ

---

(۱) مسلم ۲۲۹٦/۴.

(۲) دا د حديث لازمي معنی ده، او له ترجمې سره مناسبه ده.(ژباړن)

(۳) يعني: د هيچا په زړه نه يم خبر، او په زړونو عالم يو الله دی.(ژباړن)

يَعْلَمُونَ [وَاجْعَلْنِي خَيْرًا مِمَّا يَظُنُّونَ]»(١).

۞ الهي! ته ما په هغه څه مه نیسه* چي دوی يې (زما په باره کي) وايـي، او ما ته د هغه څه بخښنه وکړې چي دوی پري خبر ندي، او دوی چي په ما څه گمان کوي له هغه نه مي غوره وگرځوې.

## ١١٥- په حج او عمره کي به محرم لبیک څنگه وايي

٢٣٣- «لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ، لَبَّيْكَ لاَ شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ، إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ، لاَ شَرِيكَ لَكَ»(٢).

۞ الهي! ستا حکم مَنلو ته تیار یو، تا لره شریک نشته، ستا حکم مَنلو ته تیار یو، په رښتیا سره چي ټوله غوره ستاینه او د نعمت (شکر) او ټولواکي تا لره ده، تا لره هیڅ شریک نشته.

## ١١٦- حجر اسود ته د رارسیدلو په وخت «الله اکبر» ویل

٢٣٤- طَافَ النَّبِيُّ ﷺ بِالْبَيْتِ عَلَى بَعِيرٍ كُلَّمَا أَتَى الرُّكْنَ أَشَارَ إِلَيْهِ بِشَيْءٍ عِنْدَهُ وَكَبَّرَ»(٣).

---

(١) بخـــاري پـــه الادب المفرد ٧٦١ نمبر حدیث کي روایت کړی، او الباني په صحيح الادب المفرد ٥٨٥ نمـــبر حديـــث کـــي هغه صحيح بللی دی، او د مربع قوسونو تر مينځ عبارت د بيهقي زيادت دی په شعب الإيمان ٢٢٨/۴ کي له بلي طريقي نه.

(٢) بخاري (فتح الباري ۴٠٨/٣)، مسلم ٨۴١/٢.

(٣) بخـــاري (فـــتح الباري ۴٧٦/٣)، او له شي نه مراد لښته* ده، بخاري (فتح الباري ۴٧٢/٣) دي وکتل شي.

ﷺ پيغمبر ﷺ د کعبې نه يې طواف وکړ، او چې کله به حجر اسود ته راورسيد، نو هغې ته به يې په کوم شي* چې ورسره وو اشاره وکړه او «اللهُ أَكبرُ» به يې ووايه.

## ۱۱۷- د رکن يماني او حجر اسود په مينځ کي دعا

۲۳۵- «رَبَّنَآ ءاتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً، وَفِي الآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ»[(۱)].

ﷺ اې زموږ پروردګاره! موږ ته په دنيا کي نعمت راکړې، او په آخرت کي نعمت راکړې، او د دوږخ له عذاب نه مو وساتې.

## ۱۱۸- صفا او مروا باندي د وډريدو دعا

۲۳۶- لَمَّا دَنَا ﷺ منْ الصَّفَا قَرَأَ ﴿إِنَّ الصَّفَا والْمَرْوَةَ منْ شَعَائرِ اللَّه﴾ أَبْدَأُ بمَا بَدَأَ اللَّهُ به»، فَبَدَأَ بالصَّفَا فَرَقيَ عَلَيْه حَتَّى رَأَى الْبَيْتَ فَاسْتَقْبَلَ الْقبْلَةَ، فَوَحَّدَ اللَّهَ وَكَبَّرَهُ، وَقَالَ: «لاَ إِلَهَ إلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَديرٌ، لاَ إِلَهَ إلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ، أَنْجَزَ وَعْدَهُ، وَنَصَرَ عَبْدَهُ، وَهَزَمَ الأَحْزَابَ وَحْدَهُ»، ثُمَّ دَعَا بَيْنَ ذَلكَ، قَالَ مثْلَ هَذَا ثَلاَثَ مَرَّاتٍ، الحديث، وفيه: فَفَعَلَ عَلَى الْمَرْوَةِ كَمَا فَعَلَ عَلَى

---

(۱) ابو داود ۲/۱۷۹، احمد ۳/۴۱۱، او بغوي په شرح السنة ۷/۱۲۸ کي روايت کړيدی، او الباني په صحيح ابي داود ۱/۳۵۴ کي هغه حَسَن بللی دی، او آيت د سورت بقره ۲۰۱ آيت دی.

## الصَّفَا[1]

۞ کله چي به پیغمبر ﷺ و «صفا» ته نژدې شو، نو دا آیتونه به یې ویل: په رښتیا سره چي «صفا» او «مروا» د الله ﷻ (د عبادت) له نښو نښانو نه دي، په هغه څه شروع کوم په کوم چي الله شروع کړیده[2]، نو په «صفا» یې شروع وکړه، او په هغې باندي وخوت* تر څو چي یې کعبه ولیدله، نو بیا به یې مخ کعبې ته کړ، او د توحید کلمه او تکبیر به یـــې ووایه، او داسي به یې ویل: بیله* الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، هغه یو دی، شریک نلري، هغه لره ټولواکي او پوره غوره ستاینه ده، او هغـــه پر هر څه قادر* دی، بیله الله نه بل د عبادت وړه څوک نشته، یو دی، خپله وعده یې پوره کړه، او د خپل بنده (محمد ﷺ) سره یې مرسته وکړه، او (د کفارو) ډلو ته یې یوازي ماتي ورکړه، او بیا به یـــې (د هرو دوو ذکرونو) په مینځ کي دعا کوله، دا به یې درې ځلي ویل... د حدیث تر آخره پوري.

او په نوموړي* حدیث کي راغلي دي: چي په «مروا» کي به یې هم د صفا په شان (دعاګاني او اذکار) ویل.

---

(١) مسلم ٨٨٨/٢.

(٢) یعني: کوم شی چي الله ﷻ په مخکیني آیت کي اول ذکر کړیدی، او هغه «صفا» ده.(ژباړن)

## ۱۱۹- د عرفات په ورځ دعا

۲۳۷- [قال ﷺ] «خَيْرُ الدُّعَاءِ دُعَاءُ يَوْمِ عَرَفَةَ، وَخَيْرُ مَا قُلْتُ أَنَا وَالنَّبِيُّونَ مِنْ قَبْلِي: لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ»[(۱)].

۞ (پيغمبر ﷺ فرمايي) له ټولو نه غوره دعا د عرفات په ورځ دعا ده، او له ټولو نه غوره (ذکر) چې ما او له ما نه مخکې نورو پيغمبرانو ويلى دى (دادى): بيله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، هغه يو دى، هيڅ شريک نلري، هغه لره ټولواکي ده، او هغه لره پوره غوره ستاينه ده، او هغه پر هر څه قادر دى.

## ۱۲۰- د مشعر حرام[(۲)] ذکر

۲۳۸- «رَكِبَ ﷺ الْقَصْوَاءَ حَتَّى أَتَى الْمَشْعَرَ الْحَرَامَ، فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ فَدَعَاهُ، وَكَبَّرَهُ، وَهَلَّلَهُ، وَوَحَّدَهُ، فَلَمْ يَزَلْ وَاقِفاً حَتَّى أَسْفَرَ جِدّاً، فَدَفَعَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ»[(۳)].

---

(۱) ترمذي، او الباني په صحيح الترمذي ۱۸۴/۳ کې، او په الأحاديث الصحيحة ۶/۴ کې هغه حَسَن بللی دی.

(۲) يعني: مزدلفه.(ژباړن)

(۳) مسلم ۸۹۱/۲.

۞ پیغمبر ﷺ پر (خپلي اوښې) «قَصْواء» باندي سپور شو، تر څو چي مشعر حرام ته راغی، نو قبلې ته به يې مخ کړ، او دعا يې وکړه، او «الله أكبر»، او «لا إله إلا الله»، يې ووايه او الله جَلَّ جَلالُهُ يې په وحدانيت ياد کړ، او تر هغه پوري ولاړ وو تر څو چي له لمر ختو نه مخکي روښنايي ښه زياته شوه.

## ۱۲۱- (د جمراتو يا څلو ويشتلو په وخت) د هرې ښکي* ويشتلو سره «الله اکبر» ويل

۲۳۹- «يُكَبِّرُ كُلَّمَا رَمَى بحَصَاة عندَ الجمارِ الثلاث، ثُمَّ يَتَقَدَّمُ، ويَقفُ يَدعُو مُستَقْبلَ الْقبْلَة رَافعاً يَدَيْه بعدَ الجَمرة الأُولَى والثانـيَة، أمَّـا جَمْـرَةُ الْعَقَبَة فَيَرْميهَا ويُكَبِّرُ عنْدَ كُلِّ حَصَاة وينصَرِفُ وَلا يَقفُ عنْدَهَا»[(١)].

۞ د درو جمـرو* ويشتلو په وخت چي هره ښكه* ولي نو «الله اكـبر» بـه وايي، او بيا به لږ وړاندي ځي، او دريږي به او قبلې ته به مخـامخ لاسونه پورته كوي او دعا به كوي، دا د لومړۍ او دوهمي جمـرې* نه وروسته، اما دريمه جمره چي كومه ده، هغه به وُلي، او د هري ښكي* سره به «الله اكبر» وايي، او بيا به ځي او د هغې سره به (د

---

(١) بخـاري (فـتح الـباري ٣/٥٨٣، ٣/٥٨٤)، او الفاظ يې هلته وكتل شي، بخاري (فتح الباري ٣/٥٨١) وكتل شي، او مسلم هم روايت كړيدی.

دعا لپاره) نه دريږي.

## ١٣٢- د تعجب، او خوشحالونكي كار پېښيدو په وخت دعا

٢٤٠ – «سُبْحانَ اللهِ»[(١)].

۞ الله لره تو له پاكي ده.

٢٤١ – «اللهُ أكبرُ»[(٢)].

۞ الله ډير لوى دى.

## ١٣٣- چا ته چي خوشحالونكى خبر راشي، نو څه به كوي

٢٤٢ – كَـانَ النبيُّ ﷺ إذَا أَتَاهُ أَمْرٌ يَسُرُّهُ أَوْ يُسَرُّ بِهِ خَرَّ سَاجِداً شُكْراً لِلَّه تَبَارَكَ وَتَعَالَى[(٣)].

۞ پيغمـبر ﷺ تـه چي به كله داسي خبر راغى چي په هغه به خوشحاليده، او يا د بل چا لپاره د خوشحالى خبر وو، نو د الله ﷻ د شكر لپاره به په سجده پريوت.

## ١٣٤- ځوك چي په خپل بدن كي درد محسوس كړي څه به كوي

٢٤٣ – «ضَـعْ يَدَكَ عَلَى الَّذي تَأَلَّمَ مِنْ جَسَدِكَ، وَقُلْ:

---

(١) بخاري (فتح الباري ١/٢١٠، ٣٩٠، ٤١٤)، مسلم ١٨٥٧/٤.

(٢) بخاري (فتح الباري ٤٤١/٨)، صحيح الترمذي ١٠٣/٢، ٢٣٥/٢، مسند احمد ٢١٨/٥.

(٣) بيله نسائي نورو اصحاب السنن روايت كړيدى، صحيح ابن ماجه ٢٣٣/١، إرواء الغليل ٢٢٦/٢.

باسْمِ اللَّه، ثَلاثًا، وَقُلْ سَبْعَ مَرَّاتٍ: أَعُوذُ بِاللَّهِ وَقُدْرَتِهِ مِنْ شَرِّ مَا أَجِدُ وَأُحَاذِرُ»[(١)].

۞ خپل لاس د خپل بدن پر دردمن ځای کښیږده* او درې ځلې به «بسم الله» ووایې، او اوه ځلې به داسې ووایې: زه په الله سره او د هغه په قدرت سره پناه غواړم د هغه څه له شر نه چې ما ته رسیدلی دی، او زه ځني ویریږم*.

## ١٢٥- په څه شي د نظر کیدو نه د ویري دعا

٢٤٤- «إِذَا رَأَى أَحَدُكُمْ مِنْ أَخِيه، أو مِنْ نَفْسِه، أو مِنْ مَالِهِ مَا يُعْجِبُهُ، [فَلْيَدْعُ لَهُ بِالْبَرَكَةِ]؛ فَإِنَّ الْعَيْنَ حَقٌّ»[(٢)].

۞ کله له تاسو نه څوک له خپل ورور، او یاپه خپل ځان کې، او یا خپل مال کې داسې څه وګوري چې له هغه نه تعجب وکړي، نو د هغه لپاره دې د برکت دعا وکړي، ځکه نظر کیدل* حق دي[(٣)].

## ١٢٦- د ویري په حالت کې دعا

٢٤٥- «لا إِلَهَ إِلا اللهُ»[(٤)].

---

(١) مسلم ١٧٢٨/٤.

(٢) مسند احمد ٤٤٧/٤، ابن ماجه، مالک، او البانی په صحیح الجامع ٢١٢/١ کې هغه صحیح بللی دی، زاد المعاد ١٧٠/٤ د ارناؤوط تحقیق دې وکتل شي.

(٣) یعني: نظر کیدل، یا نظر لګیدل حق دی.(ژباړن)

(٤) بخاري (فتح الباري ١٨١/٦)، مسلم ٢٢٠٨/٤.

۞ بیله الله نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته.

## ۱۳۷- د قرباني حلالولو* په وخت کي څه ويل پکار دي

۲٤٦- «بِسْمِ اللَّهِ اللَّهُ أَكْبَرُ، [اللَّهُمَّ مِنْكَ وَلَكَ]، اللَّهُمَّ تَقَبَّلْ مِنِّي»(۱).

۞ د الله په نوم (حلالول کوم)، الله ډير لوی دی، الهي! دا (قرباني) ستا له طرف نه ده، او ستا لپاره يې حلالوم، الهي! ته يې را څخه قبوله کړې.

## ۱۳۸- هغه څه چي د سرکښه* شيطانانو د مکر او چل دفع کولو لپاره ويل کيږي

۲٤۷- «أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّاتِ الَّتِي لاَ يُجَاوِزُهُنَّ بَرٌّ وَلاَ فَاجِرٌ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ وَبَرَأَ وَذَرَأَ، وَمِنْ شَرِّ مَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَاءِ، وَمِنْ شَرِّ مَا يَعْرُجُ فِيهَا، وَمِنْ شَرِّ مَا ذَرَأَ فِي الأَرْضِ، وَمِنْ شَرِّ مَا يَخْرُجُ مِنْهَا، وَمِنْ شَرِّ فِتَنِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ، وَمِنْ شَرِّ كُلِّ طَارِقٍ إِلاَّ طَارِقاً يَطْرُقُ بِخَيْرٍ يَا رَحْمَنُ»(۲).

---

(۱) مسلم ۱۵۵۷/۳، بيهقي ۲۸۷/۹، او د مربع قوسونو په مينځ کي عبارت د بيهقي ۲۸۷/۹ او نورو دی، او اخيرنی جمله مي په معنی سره د مسلم له روايت نه ذکر کړه.

(۲) احمد ۴۱۹/۳ په صحيح اسناد سره، ابن السني ٦۳۷ نمبر حديث کي روايت کړيدی، او ارناؤوط د العقيدة الطحاوية په تخريج ص۱۳۳ کي د هغه اسناد صحيح بللی دی، او مجمع الزوائد ۱۲۷/۱۰ دي وکتل شي.

۞ د الله په هغه بشپړ* کلام سره پناه غواړم چې هیڅ نیک او بد سړی له هغه نه زیاتوب نشي کولای، د هغه څه له شر نه چې الله پیدا کړي، او خواره* کړیدي، او د هغه څه له شر نه چې له آسمان نه نازلیږي، او د هغه څه له شر نه چې آسمان ته خیژي، او د هغه څه له شر نه چې په ځمکه کې یې خواره کړیدي، او د هغه څه له شر نه چې له هغې نه راوځي، او د شپې او ورځې له فتنو نه، او د هغه څه له شر نه چې د شپې راتلونکی وي، نه هغه راتلونکی په شپه کې چې خیر ور سره وي، اې مهربان ذاته.

## ۱۳۹- استغفار او توبه

٢٤٨-١- قال رَسُولَ اللَّه ﷺ: «وَاللَّه إِنِّي لأَسْتَغْفِرُ اللَّهَ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ فِي الْيَوْمِ أَكْثَرَ مِنْ سَبْعِينَ مَرَّةً»(١).

۞ پیغمبر ﷺ فرمایي: په الله سره قسم چې زه په ورځ کې له اویا ځلو نه زیات له الله نه بخښنه غواړم، او هغه ته توبه باسم.

٢٤٩-٢- وقال ﷺ: «يَا أَيُّهَا النَّاسُ تُوبُوا إِلَى اللَّه، فَإِنِّي أَتُوبُ فِي الْيَوْمِ إِلَيْهِ مائَةَ مَرَّةٍ»(٢).

۞ او فرمایي: ای خلکو! الله ته توبه وباسی، او زه په ورځ کې

---

(١) بخاري (فتح الباري ١١/١٠١).

(٢) مسلم ٤/٢٠٧٦.

سل ځلې الله ته توبه باسم.

۲۵۰-۳- وقال ﷺ: «مَنْ قَالَ أَسْتَغْفِرُ اللَّهَ الْعَظِيمَ الَّذِي لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيَّ الْقَيُّومَ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ، غَفَرَ اللهُ لَهُ وَإِنْ كَانَ فَرَّ مِنْ الزَّحْفِ»[(۱)].

۞ او ﷺ فـــرمایي: څوک چي (دا دعا) ووايي: له هغه لوی او عظمـــت والا الله نه بخښنه غواړم، چي بیله هغه نه بل د عبادت وړ* معبود* نشته، ژوندی دی، (د کائناتو) تدبیر کونکی دی، او زه هغه ته توبه باسم، (چي دا دعا ووايي) نو الله به هغه ته بخښنه وکړي، که څه هم له کفارو سره د جهاد له میدان نه تښتیدلی وي[(۲)].

۲۵۱-٤- وقال ﷺ: «أَقْرَبُ مَا يَكُونُ الرَّبُّ مِنْ الْعَبْدِ فِي جَوْفِ اللَّيْلِ الآخِرِ، فَإِنْ اسْتَطَعْتَ أَنْ تَكُونَ مِمَّنْ يَذْكُرُ اللَّهَ فِي تِلْكَ السَّاعَةِ فَكُنْ»[(۳)].

---

(۱) ابـــو داود ۸۵/۲، ترمذي ۵٦۹/۵، حاکم ۵۱۱/۱ هغه صحیح کړی، او ذهبي موافقه ورسره کړیـــده، او الباني هم هغه صحیح بللی دی، صحیح الترمذي ۱۸۲/۳، جامع الاصول لاحادیث الرسول ﷺ ۳۸۹/۴-۳۹۰ د ارناؤوط تحقیق.

(۲) او دا تیښته لویه ګناه شمیرل کیږي.(ژباړن)

(۳) تـــرمذي، نسائي ۲۷۹/۱، حاکم، صحیح الترمذي ۱۸۳/۳، جامع الاصول ۱۴۴/۴ د ارنؤوط تحقیق.

۞ او فرمايي: پروردګار له هر وخت نه زيات د شپې په آخره حصه کې خپل بنده ته نژدې وي، نو که وکلای شې چې پدغه وخت کې له ذکر کونکو نه شې، نو همداسې شه.

**٢٥٢-٥- وقال ﷺ: «أَقْرَبُ مَا يَكُونُ الْعَبْدُ مِنْ رَبِّهِ وَهُوَ سَاجِدٌ، فَأَكْثِرُوا الدُّعَاءَ»[(١)].**

۞ او فرمايي: بنده له هر حالت نه زيات هله* خپل پروردګار ته نژدې وي چې په سجده وي، نو (په سجده کې) زياته دعا وکړی.

**٢٥٣-٦- وقال ﷺ: «إِنَّهُ لَيُغَانُ عَلَى قَلْبِي، وَإِنِّي لأَسْتَغْفِرُ اللَّهَ فِي الْيَوْمِ مِائَةَ مَرَّةٍ»[(٢)].**

۞ او فرمايي: زما په زړه پرده غوندې راشي (کله کله د الله له ذکر نه مشغول شي) او زه له الله نه په ورځ کې سل ځلې بخښنه غواړم.

---

(١) مسلم ٣٥٠/١.

(٢) مسلم ٢٠٧٥/٤، ابن الاثير وايي: «ليغان على قلبي» معنى داده: زما زړه باندې څه پرده راشي، او له هغه نه مراد سهو او توجه اوښتل دي، څکه پيغمبر ﷺ به هميشه په زياته توګه سره ذکر وايه، او (الله) ته به يې ځان نژدې ګاوه، او دوامداره مراقبت به يې کاوه، او چې کله به يې په بعضې وختونو کې توجه لږ نه واوښته، او يا به يې هيره شوه، نو دا به يې د ځان لپاره ګناه بلل، نو څکه خو به يې استغفار ته رجوع کوله.

جامع الاصول ٣٨٦/٤ دې وکتل شي.

## ١٣٠- د «سبحان الله»، او «الحمد لله»، او «لا اله الا الله»، او «الله اکبر» فضيلت

٢٥٤-١- قال ﷺ: «مَنْ قَالَ سُبْحَانَ اللّه وَبحَمْده، في يَوْمٍ مائَةَ مَرَّة، حُطَّتْ خَطَايَاهُ، وَإنْ كَانَتْ مثْلَ زَبَد الْبَحْرِ»[(١)].

۞ پیغمبر ﷺ فرمايي: څوک چې په ورځ کې سل ځلې «سُبْحَانَ اللَّـــه وَبحَمْـــده[(٢)]» ووايي، ګناهونه به يې توی* شي، که څه هم د سمندر* د ځګ* په اندازه وي.

٢٥٥-٢- وقـــال ﷺ: «مَنْ قَالَ: لاَ إلَهَ إلاّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَـــريكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَديرٌ، عَشْرَ مرارٍ، كَانَ كَمَنْ أَعْتَقَ أَرْبَعَ أَنْفُسٍ منْ وَلَد إسْمَاعيلَ»[(٣)].

۞ او فرمايي: څوک چې «لاَ إلَهَ إلاّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَريكَ لَهُ، لَـــهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَديرٌ[(٤)]» لس ځلې ووايي، د هغه چا په شان به وي چې د اسماعيل عليه السلام له اولادې نه يې

---

(١) بخاري ١٦٨/٧، مســـلم ٢٠٧١/٤، او په سهار او مابنام کې يې د سلو ځلو لوستلو فضيلت دې په همدې کتاب کې د(٩١) نمبر حديث په حاشيه کې وکتل شي.

(٢) ترجمه يې مخکې په (٩١) نمبر حديث کې شويده.(ژباړن)

(٣) بخـــاري ٦٧/٧، مسلم بلفظه ٢٠٧١/٤، او د هغه په ورځ کې د سلو ځلو ويلو فضيلت دې په همدې کتاب کې د (٩٣) نمبر حديث په حاشيه کې وکتل شي.

(٤) ترجمه يې مخکې شويده.(ژباړن)

څلور مريان* آزاد كړي وي.

٢٥٦-٣- وقـــال ﷺ: «كَلمَتَان خَفيفَتَان عَلَى اللّسَان، ثَقيلَتَان في الْميزَان، حَبيبَتَان إلَى الرَّحْمَن: سُبْحَانَ اللَّه وَبحَمْده، سُبْحَانَ اللَّه الْعَظيم»[١].

❁ او فـــرمايي: دوه كـــلمې دي چې پر ژبه سپكي، په تله* كي درنـــې، مهربان (خداى) ته محبوبي دي (هغه دادي): «سُبْحَانَ اللَّه وَبحَمْده، سُبْحَانَ اللَّه الْعَظيم[٢]».

٢٥٧-٤- وقـــال ﷺ: «لأَنْ أَقُولَ سُبْحَانَ اللَّه، وَالْحَمْدُ للَّـــه، وَلاَ إلَـــهَ إلاَّ اللَّهُ وَاللَّهُ أَكْبَرُ، أَحَبُّ إلَيَّ ممَّا طَلَعَتْ عَلَيْه الشَّمْسُ»[٣].

❁ او فرمايي: د «سُبْحَانَ اللَّه، وَالْحَمْدُ للَّه، وَلاَ إلَهَ إلاَّ اللَّهُ وَاللَّـــهُ أَكْبَرُ[٤]» ويـــل ما ته له هغه څه نه ډېر غوره دي چې لمر پرې راختلى دى[٥].

٢٥٨-٥- وقال ﷺ: «أَيَعْجزُ أَحَدُكُمْ أَنْ يَكْسبَ كُلَّ يَوْمٍ

---

(١) بخاري ١٦٨/٧، مسلم ٢٠٧٢/٤.

(٢) ترجمه يې مخكي شويده.(ژباړن)

(٣) مسلم ٢٠٧٢/٤.

(٤) ترجمه يې مخكي شويده.(ژباړن)

(٥) يعني: ددې كلماتو ويل له ټولو مخلوقاتو نه ما ته غوره دي.(ژباړن)

أَلْــفَ حَسَــنَةٍ؟» فَسَــأَلَهُ سَائِلٌ مِنْ جُلَسَائِه: يَا نَبِيَّ اللَّه كَيْفَ يَكْسِبُ أَحَدُنَا أَلْفَ حَسَنَةٍ؟ قَالَ: «يُسَبِّحُ مِائَةَ تَسْبِيحَةٍ، فَيُكْتَبُ لَهُ أَلْفُ حَسَنَةٍ، أَوْ يُحَطُّ عَنْهُ أَلْفُ خَطِيئَةٍ»[(١)].

۞ او ﷺ فرمايي: آيا له تاسو نه يو څوک نشي کولای چي هره ورځ زر نــيکی لاس ته راوړي، نو له ناستو کسانو نه يو کس ورځخه پوښتنه وکړه چي څنګه يو کس له موږ ځخه کولای شي زر نيکی لاس ته راوړي؟ (پيغمبر ﷺ) وفرمايل: سل ځلي دي «سبحان الله» ووايي، نو هغه لره به زر نيکی وليکل شي، او يا به يې زر ګناهونه ورژيږي*.

٢٥٩-٦- «مَــنْ قَــالَ: سُبْحَانَ اللَّه الْعَظِيمِ، وَبِحَمْدِه، غُرِسَتْ لَهُ نَخْلَةٌ فِي الْجَنَّةِ»[(٢)].

۞ (او فرمايي) څوک چي «سُبْحَانَ اللَّه الْعَظِيمِ، وَبِحَمْدِه[(٣)]» ووايي، هغه لره به يوه د خرما* وَنه په جنت کي وکَرل شي*.

٢٦٠-٧- وقــال ﷺ: «يَا عَبْدَ اللَّه بْنَ قَيْسٍ، أَلاَ أَدُلُّكَ عَلَــى كَنْزٍ مِنْ كُنُوزِ الْجَنَّةِ؟» فَقُلْتُ: بَلَى يَا رَسُولَ اللَّه، قَالَ:

---

(١) مسلم ٢٠٧٣/٤.

(٢) تــرمذي ٥١١/٥، حــاكم ٥٠١/١ هغــه صحيح بللی، او ذهبي ورسره موافقه کړيده، صحيح الجامع ٥٣١/٥، صحيح الترمذي ١٦٠/٣.

(٣) ترجمه يې مخکي شويده. (ژباړن)

«قُلْ لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إلاَّ باللَّه»[١].

۞ او ﷺ فرمايي: اې عبد الله بن قيسه! آيا تا ته د جنت د خزانو نه يوه خزانه ونه ښايم؟ نو ما وويل: ولې نه، اې د الله پيغمبره! (پيغمبر ﷺ) وفــرمايل: ووايه: هيڅ طاقت او قوت نشته (د ګناه نه د ساتلو* او د نيکيو د کولو) مګر په (توفيق) د لوى الله ﷻ سره.

٢٦١-٨- وقــال ﷺ: «أَحَــبُّ الْكَلاَم إلَى اللَّه أَرْبَعٌ: سُبْحَانَ اللَّه، وَالْحَمْدُ للَّه، وَلاَ إلَهَ إلاَّ اللَّهُ وَاللَّهُ أَكْبَرُ، لاَ يَضُرُّكَ بأَيِّهنَّ بَدَأْتَ»[٢].

۞ او فــرمايي: الله ته له ټولو نه زيات خوښ کلمات څلور دي: «سُبْحَانَ اللَّه، وَالْحَمْدُ للَّه، وَلاَ إلَهَ إلاَّ اللَّهُ وَاللَّهُ أَكْبَرُ[٣]»، چې په کومه دې شروع وکړه تاته پکښې څه نقصان نشته.

٢٦٢-٩- جَاءَ أَعْرَابيٌّ إلَى رَسُول اللَّه ﷺ فَقَالَ: عَلِّمْني كَلاَماً أَقُولُهُ، قَالَ: «قُلْ: لاَ إلَهَ إلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَريكَ لَهُ، اللَّهُ أَكْــبَرُ كَبيراً، وَالْحَمْدُ للَّه كَثيراً، سُبْحَانَ اللَّه رَبِّ الْعَالَمينَ، لاَ حَــوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إلاَّ باللَّه الْعَزيز الْحَكيم» قَالَ: فَهَؤُلاَء لرَبِّي فَمَا

---

(١) بخاري (فتح الباري ٢١٣/١١)، مسلم ٢٠٧٦/٤.
(٢) مسلم ١٦٨٥/٣.
(٣) ترجمه يې مخکې شويده (ژباړن)

لِي؟ قَالَ: «قُلْ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي، وَارْحَمْنِي، وَاهْدِنِي وَارْزُقْنِي»(١).

۞ يو صحرايي* پيغمبر ﷺ ته راغی او ويې ويل: ما ته داسي خبره وښايه چي زه يې ووايم، (پيغمبر ﷺ) وفرمايل: induced ووايه: «لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، اللَّهُ أَكْبَرُ كَبِيراً، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ كَثِيراً، سُبْحَانَ اللَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ، لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ(٢)»، (سـړي) وويل: دا خو زما د پروردګار لپاره دي، زما لپاره څه دي؟ (پيغمبر ﷺ) وفرمايل: ووايه: الهي! ما ته بخښنه وکړې، او پر ما رحم وکړې، او ما ته هدايت وکړې، او روزي را ته راکړې.

٢٦٣-١٠- كَانَ الرَّجُلُ إِذَا أَسْلَمَ عَلَّمَهُ النَّبِيُّ ﷺ الصَّلاَةَ، ثُمَّ أَمَرَهُ أَنْ يَدْعُوَ بِهَؤُلاَءِ الْكَلِمَاتِ، «اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي، وَارْحَمْنِي، وَاهْدِنِي، وَعَافِنِي، وَارْزُقْنِي»(٣).

۞ کله چي به يو سړی مسلمان شو، نو پيغمبر ﷺ به لمونځ* ور زده کاوه، او بيا به يې ددې کلماتو په ويلو امر ورته کاوه: الهي! ما ته بخښنه وکړې، او پر ما رحم وکړې، او ما ته هدايت وکړې، او ما ته

---

(١) مسلم ٢٠٧٢/٤، او ابو داود زيات کړيدي: کله چي صحرايي سړی روان شو، پيغمبر ﷺ وفرمايل: په رښتيا سره يې خپل لاسونه له خير نه ډک کړل. ٢٢٠/١.

(٢) د نومړو اذکارو ترجمه مخکي په مختلفو ځايونو کي شويده.(ژباړن)

(٣) مسلم ٢٠٧٣/٤، او پـه بـل روايت کي يې داسي راغلي دي: دا کلمات ستا لپاره د دنيا او آخرت خيرونه را ټولوي.

عافيت راكړي، او روزي را ته راكړي.

٢٦٤-١١- «إِنَّ أَفْضَلَ الدُّعَاءِ: الْحَمْدُ لِلَّهِ، وَأَفْضَلُ الذِّكْرِ: لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ»[(١)]

۞ (او فرمايي) په رښتيا سره چي بهترينه دعا «الحمد لله» ده، او بهترين ذكر «لا إله إلا الله» دى.

٢٦٥-١٢- «الْبَاقِيَاتُ الصَّالِحَاتُ: سُبْحَانَ اللَّهِ، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ، وَلا إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَاللَّهُ أَكْبَرُ، ولاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللَّهِ»[(٢)].

۞ (او فرمايي) نيكي، او (له انسان نه ورسته) پاتې كيدونكي (كلمات دادي): «سُبْحَانَ اللَّهِ، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ، وَلا إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَاللَّهُ أَكْبَرُ، ولاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللَّهِ[(٣)]».

## ١٣١- د پيغمبر ﷺ د تسبيح ويلو طريقه

٢٦٦- عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو رضي الله عنهما قَالَ:

---

(١) ترمذي ٤٦٢/٥، ابن ماجه ١٢٤٩/٢، حاكم ٥٠٣/١ هغه صحيح بللى، او ذهبي ورسره موافقه كړيده، صحيح الجامع ٣٦٢/١.

(٢) احمد ٥١٣ نمبر حديث كي د احمد شاكر په ترتيب سره روايت كړيدى، او اسناد يې صحيح دى، مجمع الزوائد ٢٩٧/١ دي وكتل شي، او ابن حجر په بلوغ المرام كي هغه د ابو سعيد له روايت نه و نسائي ته نسبت كړيدى، او ويلي يې دي: هغه ابن حبان، او حاكم صحيح بللى دى.

(٣) ددې كلماتو ترجمه مخكي شويده.(ژباړن)

رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ ﷺ يَعْقِدُ التَّسْبِيحَ بِيَمِينِه[(١)].

۞ لـــه عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما نه روایت دی: چې ما پیغمبر ﷺ ولید چې په ښي* لاس سره یې تسبیحات (اذکار) ویل.

## ۱۳۳- د ښکیو او عامو آدابو څخه

٢٦٧- «إِذَا كَـــانَ جُـــنْحُ اللَّـــيْلِ -أَوْ أَمْسَيْتُمْ- فَكُفُّوا صِبْيَانَكُمْ؛ فَإِنَّ الشَّيَاطِينَ تَنْتَشِرُ حِينَئِذٍ، فَإِذَا ذَهَبَ سَاعَةٌ مِنْ اللَّيْلِ فَخَلُّوهُمْ، وأَغْلِقُوا الأَبْوَابَ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ؛ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لاَ يَفْـــتَحُ بَاباً مُغْلَقاً، وَأَوْكُوا قِرَبَكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ، وَخَمِّرُوا آنِيَتَكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ، وَلَوْ أَنْ تَعْرُضُوا عَلَيْهَا شَيْئاً، وَأَطْفِئُوا مَصَابِيحَكُمْ»[(٢)].

۞ (پیغمـــبر ﷺ فرمایي) کله چې شپه تیاره شي، یا شپه در باندې راشـــي، نـــو خپل ماشومان (کور څخه وتلو نه) بند کړی، ځکه چې شـــیطانان پدې وخت کې خورېږي*، کله چې د شپې نه یو ساعت تیر شي، نو بیا یې خوشې کړی. او دروازې* مو بندې کړی، او د الله نوم (پـــه هغـــه) یـــاد کړی، ځکه چې شیطانان تړلې او بنده دروازه نشي پرانستلای*. او د خپل ژیانو* سرونه پټ کړی، او د الله نوم (په هغه)

(١) ابو داود بلفظه ٢/٨١، ترمذي ٥/٥٢١، صحيح الجامع ٤/٢٧١، ٤٨٦٥ نمبر حديث .

(٢) بخاري (فتح الباري ١٠/٨٨)، مسلم ٣/١٥٩٥.

ياد كړي، او خپل لوبني پټ كړي، او د الله نوم (په هغه) ياد كړي، كه څه هم له پاسه پرې څه كښيږدي، او خپل څراغونه* مړه كړي.

وصلى الله وسلم وبارك على نبينا محمد وعلى آله وأصحابه أجمعين.

## په کتاب کې د یاګانو رسم الخط

| مثال | د (یاء) رسم الخط |
| --- | --- |
| ځي، بچي | (ي) |
| سړې اوبه، مزې | (ې) |
| سړی، تندی | (ی) |
| هګۍ، څپلۍ | (ۍ) |

## ورته رسم الخطونه

لاندینـــي حـــرفونه په نورو ورته رسم الخطونو سره هم لیکل کیږي، چې هغه دادي:

| ورته رسم الخط | د کتاب رسم الخط |
| --- | --- |
| (ٹ) لکه: ٹپونه | (ټ) |
| (ڈ) لکه: ڈوڈے | (ډ) |
| (ڑ) لکه: خوڑل | (ړ) |
| (ے) لکه: (سړے، تندے) | (ی) |
| (ی) لکه: (ځی، بچی) | (ي) |

## د لهجې د اختلاف په صورت کې د يو معنا لرونکو کلماتو لست

| کلمه | ورته معنا يا لهجه |
| --- | --- |
| اړخ | ډډه |
| احاطه | په بر کې نيونه، چاپېروالی |
| استسقاء | باران اورېدل غوښتل |
| افاده کول | ورکول، ادا کول |
| امېد | طمع |
| انجام | عاقبت، نتيجه |
| انديښنې | سوچونه، فکرونه، تشويشونه |
| اوبه کول | اوبه څښول، اوبه ورکول، خړوبې کول |
| اوچت | لوړ |
| اوښان | اوښې، اوښونه |
| آواز | غږ، ږغ |
| آينده | مستقبل، راتلونکې زمانه |
| با برکته | برکت والا، برکتناک |
| بار | پېتی |
| بارخو | رخسار، اننګی |
| بادونه | سيلۍ |
| بخښنه | ښښنه، عفو |
| بخل | کنجوسي |

| ورته معنا يا لهجه | کلمه |
| --- | --- |
| بد فالي، بد مرغي، کرکه کول | بدشګومي |
| سم، سيده، اصلاح، جوړ | بِرابر |
| لرونکي | برخمن |
| کاميابه، برلاسي | بريالي |
| کامل، پوره | بشپړ |
| تکميل، پوره والی | بشپړوالی |
| د يو ځای نوم دی | بطحان |
| دعوت، غوښتنه | بلنه |
| د اوښ ګوپ | بوک |
| ګوپونه، ګوپان | بوکونه |
| واپس کيدل | بيرته راتلل |
| واپس کيدل | بيرته کيدل |
| بزدلي، ډار، ويره | بې زړه توب |
| مستغني، احتياج نلرونکی، بې پروا | بې نيازه |
| جلا، جدا | بيل |
| بغير، پرته | بيله |
| تنګدستي، فقر | بې وزلتوب |
| بادشاه، بادشاهي | پاچا، پاچاهي |
| ولاړ شو | پاڅيده |
| ولاړ شي | پاڅيږي |
| پرې | پر |

| کلمه | ورته معنا یا لهجه |
|---|---|
| پرانستل | بېرته کول، خلاصول |
| پرکالي | د خوب د جوړو وهلو حالت، د خوب د آثارو ښکاره کېدلو حالت |
| پرې کېدونکي | قطع کېدونکي |
| پرېشانې | اندېښنې، سوچونه |
| پسرلی | سپرلی، بهار |
| پښه | ښــپه |
| پښې | ښــپې |
| پښېمانه | ښــپېمانه |
| پلو کې | ووجو کې |
| په بر کې نیول | په څنګ کې نیول، په یو شي باندې چاپېره کېدل |
| پوټکی | پوستکی، څرمن |
| پوښتنه | تپوس، سوال |
| ټاکلی | معین، معلومدار |
| تالنده | د آسمان ګړزا، غرنده، تندر |
| تدبُر او تفکُر | فکر کول، سوچ کول، غور کول |
| تدبیرونکی | انتظام کوونکی، تنظیمونکی |
| ترچیدل | پرنجې کول، ترچَل، پرچیدل، پرنجیدل |
| تزکیه | بې عیبه کېدل، د ښو اخلاقو خاوند کېدل |
| تسلیم | تابعدار، فرمانبردار |
| تضرع | زارۍ، عاجزي |

| ورته معنا یا لهجه | کلمه |
|---|---|
| د مړي خپلوانو ته تسلي ورکول او مړي ته دوعا کول | تعزیه |
| وچولی | تندی |
| سستي، کسالت | تنبلي |
| همیشه | تَل |
| ترازو | تَله |
| فرق | توپیر |
| ذخیره | توښه |
| ډول، شکل | توګه |
| اعتماد، تکیه | توکل |
| پوره واکدار، د کاملې پاچاهۍ خاوند | تولواک |
| پوره واکداري، کامله پاچاهي | تولواکي |
| ورزیږي | توی شي |
| اجر | ثواب |
| ساحر، کوډګر | جادوګر |
| کالي | جامه |
| پوره کول، نقصان لیرې کول | جبیره |
| هغه وړې تیګې چې شیطان په ویشتل کیږي | جمرې |
| ځواب | جواب |
| ګڅ، کین | چپ |
| بانګې | چرګ |
| ځلکدن، ځنکدن، د سا وتلو حالت | ځکندن |

| ورته معنا يا لهجه | کلمه |
| --- | --- |
| واري | ځلې |
| زمکه | ځمکه |
| ویده کیدل، پریوتل | ځملاستل |
| ذبح کول، قرباني کول، حلاله کول | حلالول |
| عام کول، نشرول | خپرول |
| نشرول، تیتول، عام کول | خپرول |
| خوځنده، حشره | خزنده |
| خپور، خپاره | خوره |
| څناور | څاروي |
| ډیوې، چراغونه | څراغونه |
| بیانوول، ښکاره کول | څرګندونه |
| خاوند | څښتن |
| قطره | څاڅکی |
| برسیره، کولاوي، بیرته | خلاصي |
| خلق | خلک |
| د خوراک شیان، طعام | خواړه |
| چتلي، چرک | خیري |
| په منډه تلل، منډه وهل | دانګل |
| تخم | دانه |
| رتبې، درجات | درجې |
| ورونه | دروازې |

| ورته معنا یا لهجه | کلمه |
|---|---|
| دوږخ، جهنم | دوزخ |
| مینځ ته راوړی دی | راوستلی دی |
| پروردګار | رِب |
| د سترګې یو څل بندولو په اندازه وخت | رَپ |
| واپس کیږي، نه منل کیږي | رد کیږي |
| په ځای کړه | رښتوني کړه |
| نور | رڼا |
| رزق | روزي |
| روژه نیونکی | روژه دار |
| روژه دار | روژه نیونکی |
| رڼایي پکښې کې واچوې، نوراني کړې | روښانه کړې |
| څما | زما |
| ظلم، تیری | زیاتی |
| تاوان، نقصان | زیان |
| زونه، زړی | زنه |
| ترجمه کول | ژباړل |
| مترجم، ترجمه کونکی | ژباړن |
| بچ کول، ساتل | ژغورل |
| د اوبو مشکونه، مفرد: ژی | ژیان |
| بچ کول، حفاظت کول | ساتل |
| پاکوالي | سپېڅلتیا |

| کلمه | ورته معنا یا لهجه |
| --- | --- |
| ستاینه | حمد او ثنا، صفت، تعریف |
| ستاینونکی | ثنا وصفت ویونکی، تعریف کونکی |
| سرکښه | سرکش، بیلاري |
| سمبال | ښایسته، مجهز |
| سمندر | دریاب، بحر |
| سهار | سحر، صبا، صبائي |
| سورلۍ | د سپریدولو حیوان لکه: آس، خر او نور |
| سیده | سمه، برابره |
| سیوری | سایه |
| شاهدي | ګواهي، شهادت |
| شاوخوا | چار چاپیر |
| شرق | مشرق، لمر ختلو طرف |
| ښخول | دفن کول، خښول |
| شفاعت | سفارش |
| ښکنځل | کنځل، کنځا، رد بد |
| شګه | کوچنی کاڼي یا تیګه |
| ښودنه | ښوونه، رهنمایي |
| ښي | راسته |
| شودي | پی، شیدي |
| شی | څیز |
| شیان | څیزونه |

| کلمه | ورته معنا یا لهجه |
|---|---|
| صحرايي | بانډېچي، صحرا نشين، دصحرا اوسيدونکی |
| صفه | هغه ځای چې فقير او ناداره صحابه پکښې کښيناستل |
| ضايع کول | بېځايه کول، باطلول |
| ظلم | زياتې |
| عادلانه | پر ځای، منصفانه |
| عافيت | روغتيا |
| عاقبت | انجام، نتيجه |
| عذاب | سزا، جزا |
| عقيق | د يو ځای نوم دی |
| غاړي | مرياني |
| غرب | مغرب، لمر لويدلو طرف |
| غضب | غصه، قهر |
| غوره | ښه، بهتر |
| غونډ | يو ځای |
| غيبيات | د مخلوقاتو له علم نه پټ شيان |
| فرښته | ملائکه، ملکه، فرشته |
| فطرت | دين، لاره |
| فکر | سوچ |
| قادر | توانا |
| قرباني | پسه يا بل حلال حيوان حلالول |
| کړو | اعمالو |

| ورته معنا يا لهجه | كلمه |
| --- | --- |
| مخلوقات | كائنات |
| ښکته | کښته |
| کيږدي، کيدي، راولي | کښيږدي |
| د ګناه بدله، بدله، ګناه ورکونکې | کفاره |
| زيور | ګاڼه |
| سياحت کونکي، ګرځيدونکي | ګرځندويه |
| چابک، چټک، تېز | ګړندی |
| بې لارې | ګمراه |
| همبستري، جماع کول، يوځای کيدل | کوروالي کول |
| لياره | لاره |
| لامده | لانده |
| لټوالي، بيکاري | لټي |
| له طرف نه | لخوا |
| لنده، تړه | لمده |
| مونځ | لمونځ |
| له ما نه بچ کړې او ليرې کړې | له ما نه وګرځوې |
| اوچت | لوړ |
| اوچتوي | لوړوي |
| ما ته | ما لره |
| بيګاه | ماښام |

| ورته معنا یا لهجه | کلمه |
|---|---|
| مازغه | ماغزه |
| اوښتونکي، میلان کونکي، خوښونکي | مایل |
| مانند | مِثل |
| خصومت کول، جنګ کول | مجادله |
| میلاویدل | مخامخ کیدل |
| مخکي تلونکي، پیش روی | مخکښ |
| د مړ حیوان لاش | مرداری |
| مړه کیږو | مرو |
| غلام | مریی |
| بي پروا، بي نیازه | مستغني |
| جومات | مسجد |
| مسح کول، په یو شي لاس تیرول، لاس راکاږل | مسه کول |
| شرق او غرب، ختیځ او لویدیځ | مشرق او مغرب |
| خدای، هغه څوک چي نور یې عبادت کوي | معبود |
| په خپل کور او وطن کي، هغه څوک چي مسافر نه وي | مقیم |
| ملګری | مل |
| فرشته، ملَکه | ملائکه |
| څغاسته | منډه |
| مه مأخوذه کوه | مه نیسه |

| کلمه | ورته معنا یا لهجه |
|---|---|
| مهارږونکي | تابعداره کونکي، کنټرولونکي |
| موذن | بانګي، آذان کونکي |
| مینځه | وینزه، کنیزه |
| ناڅاپه | نابېره، ناګهانه |
| ناڅیزه | لږه |
| ناوړه | بد، خراب |
| نظر کیدل | د چا د کتلو په وجه بد اثر لویدل |
| نغښتي | پراته، موجود |
| ننوتل | داخلیدل |
| ننوتو | داخل شولو |
| نو | پس |
| نومړی | مذکور |
| نومولی دی | ایښودلی دی، بللی دی |
| نیکان | صالحان، نیک عملان |
| نیکي | ښیګڼه |
| نېټه | تاریخ، وخت |
| هدایت | لارښوونه، رهنمایي |
| هرومرو | خامخا، ضرور، حتما |
| هله | هغه وخت |
| همیشني | دائم |
| هنګار | هنار، د خره آواز او رمباړه |
| وړ | مستحق، لائق |

| کلمه | ورته معنا یا لهجه |
|---|---|
| واړه | اهل وعیال، بچیان |
| واچوي | وغورځوي |
| وازه | ددوو لاسونو د ګوتو تر مینځ مسافې ته ویل کیږي، چې کله دواړه د یو مستقیم خط په شکل سره خلاص شي، او په عربي ورته «باع» وایي، او (۱۶۲) سانتي متر اوږدوالی لري. |
| وبخښنه | وبښه، عفو کړه |
| وخښي | وځکي |
| وخوت | وخاته، پورته شو |
| وږژیږي | توی شي، محو شي |
| ورغوي | د لاس تلي |
| ورروسته | روستو |
| وسپاره | حواله کړو |
| وغوښتل شي | دعوت شي |
| وَکَړَل شي | شنه کړل شي، ونالوَل شي، نال کړې شي، کینښودل شي |
| ولاړ | پاڅیدلی |
| ولاړه | لاړه، ختمه شوه، لیرې شوه |
| ولوِست | ووایه |
| ووَتو | خارج شولو، بیرون شولو |
| ویره | ډار، خطره، یره، بیره |

| کلمه | ورته معنا یا لهجه |
| --- | --- |
| ویریږي | بیریږي، یریږي، ډاریږي |
| ویښته | وریښتان |
| یوازي | تنها، یواځي |

# د موضوعاتو فهرست

| موضوع | صفحه |
|---|---|

# حصن المسلم

## من أذكار الكتاب والسنة

تأليف

الفقير إلى الله تعالى

د. سعيد بن علي بن وهف القحطاني

ترجمة

عبد الناصر زلال (?)

بلغة «البشتو»

وكالة المطبوعات والبحث العلمي

وزارة الشؤون الإسلامية والأوقاف والدعوة والإرشاد

المملكة العربية السعودية

١٤٣٦ هـ

# حصن المسلم

## من أذكار الكتاب والسنة

تأليف

د. سعيد بن علي بن وهف القحطاني

باللغة التاميلية


وكالة المطبوعات والبحث العلمي

ص.ب ٦١٨٤٣ الرياض ١١٥٧٥ | هاتف : ٤٧٣٦٩٩٩ | فاكس : ٤٧٣٧٩٩٩

الهاتف الإرشادي المجاني : ٨٠٠٢٤٥١٠٠٠ | التوعية الآلية المجانية : ٨٠٠٢٤٨٨٨٨٨

info@islam.org.sa